


دشیخ سلطان عزیز (عزیز) رح دژوندا او آند څوشیبې!




اتم کال لسمه ګڼه، پرلپسې ۷۴ ګڼه، غوایی – غبرګولی ۱۳۹۲ ل، اپریل ۲۰۱۳ م

دسي ای اي ډالراو دګوشتي ربړه ؟

اسلامي هیوادونوکې د(شریعت)دنفاذ نوې هیلې!

دمسلمان ارزانه وینه...!

همت ته دې سلام او پر لوړ عزم دې آفرین !

ازره

عملیات کامیاب طالبان در ازره لوگر

# سرک

**علمي ، فرهنګي ، ټولنيزه اسلامي خپرونه**



سرلیک


اتم کال لسمه ګڼه – پرلپسې 74 ګڼه –غوايي – غبرګولی 1392ل،
جمادی الثاني 1434ق– اپریل 2013م


| مخ | عنوان | ګڼه |
|---|---|---|
| 1 | سرلیکنه........................................ | 1 |
| ۲ | دخالد بن ولید رض عملیات ........................ | 2 |
| 4 | همت دې سلام اوپه لوړ عزم دې آفرین .............. | 3 |
| 7 | له مولانا قاري حبیب الله صیب سره مرکه ............ | 4 |
| 11 | عملیات کامیاب طالبان درولسوالی ازره لوګر........ | 5 |
| 13 | دسې آی ای ډالر اودګوښتي ربړه..................... | 6 |
| 15 | ګوانتنامو دامریکایی منافقت ستر مثال............... | 7 |
| 18 | دغوایي ۷ او ۸ اوروان یرغل........................ | 8 |
| 20 | رسانه های داخلی ، درخدمت یا خیانت ملی.......... | 9 |
| 22 | دعزیزالتفاسر دمحدث اومفسر شیخ سلطان عزیز.... | 10 |
| 30 | روغن زیتون وآهمیت آن در درمان امراض........... | 11 |
| 32 | له نامتو شاعر اوادیب ښاغلي ګوهری ص سره مرکه.. | 12 |
| 39 | اسلامي هیوادونو کې دشریعت دنفاذ نوې هیلې...... | 13 |
| 42 | په اسلام کې دانډیوالۍ معیار ...................... | 14 |
| 44 | ګلکځونه........................................... | 15 |
| 46 | دصلیبیانو په خلاف عملیات دخالدبن ولیدپه نوم... | 16 |
| 50 | دمسلمانانو ارزانه وینه............................ | 17 |
| 53 | افغانستان کې دروسانو دبیار اېښکېلولو هڅې........ | 18 |
| 56 | مقاله څنګه ولیکو ؟؟؟؟؟؟؟؟؟؟؟؟؟؟؟؟؟؟؟؟؟؟؟ | 19 |
| 61 | دامریکاافغان جنګ دستر اتیژیوبحران............... | 20 |
| 65 | دبروکسل ناستې په حقایقو سترګې پټې کړې....... | 21 |
| 67 | دپنجوایي دفاجعې دوسیه څنګه شوه ؟............. | 22 |
| 70 | مورې................................................ | 23 |
| 72 | دجمهوري ریاست دماڼۍ مداري..................... | 24 |
| 73 | اربکیان (ملیشه) دتاریخ په آیینه کې.............. | 25 |
| 77 | خرقه مبارکه........................................ | 26 |
| 80 | مهمان نوازی درفرهنګ اسلامي...................... | 27 |


**امتیاز :**

دامتیازخاوند : دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کمیسیون

مسؤل مدیر : عبید تنویر

لیکوال پلاوی : ډاکټر صابر ، حمید ، جمیل مېړني او افضل محمد تراب

**ګډوث :**

افغانستان : 180 افغانۍ
پاکستان : 240 کلدارې
امریکا : 60 ډالره
اروپا : 60 یورو
یوه ګڼه : 15 افغانۍ
25 کلدارې


**یادونه**

حتمي نه ده چې په ځرک کې خپرې شوې مقالې دادارې دپالیسي ترجمانې وکړي هره لیکنه دلیکوال خپل نظر دی.


**پتې :**

تخنیکي چارې : عابد مجاهد

کابل : د ⬜رک دفتر

srak_111@yahoo.com

سرمقاله

بسم الله الرّحمن الرّحیم

# امریکا په افغانستان کې ۹ پوځي اډې غواړي !؟

دافغانستان دختیځ ګوشتې ولسوالۍ په سرحدي پوله دتاوتریخوالي اوشخړې وروسته چې ویل کیږي پاکستان دافغانستان څه ځمکه لاندې کړې ورسره یوځای کرزي دامریکا دپوځي اډو خبره راپورته کړه او ویې ویل چې امریکا غواړي په افغانستان کې نهه پوځي اډې ولري، کرزي روښانه کړه چې دده رژیم له دغو اډو سره موافق دی خو په بدل کې یې امتیازات غواړي .

په دې خبره کې دیوې ذرې هومره شک اوشبهه نشته چې دافغانستان په یوې لوېشت خاوره هم کوم هیواد که هغه امریکا،ناټو، برتانیه ، روس اویاهم دافغانستان کوم ګاونډی هیواد وي دیرغل اواشغال نیت اوسوچ کې ولري دیوه افغان په صفت هیڅکله دزغم اوتحمل وړ نه ده ، بایددیوې ملي فریضې له مخې یې مخه ونیول شي اوکلک ځواب ورته وویل شي ، خو دګوشتې ولسوالۍ په پوله دنوې راټوکول شوې شخړې څخه برېښي چې ترشایې دهغه استعمار ښکاره اوژور لاس موجود دی چې غواړي دوه ګاونډي اومسلمان وروڼه ولسونه یوله بل سره په تلپاتو کړاونو اواخ وډب کې مبتلااولاس اوګرېوان کړي اوپه عین حال کې ځان دریمګړی وښیي اودخپل شتون او موجودیت لپاره زمینه سازی وکړي .

که داسې نه وي نودګوشتې پرپوله امریکا ولې هغه پوستې چې له یوې لسیزې څخه ډېر ددوی قواوې پکې مېشت وې ددې پرځای چې دتخلیې په وخت یې رنګې اوله منځه وړې وای اویایې افغان لوري ته په اختیار کې ور کړې وای دیوې خاصې لوبې له مخې یې برعکس کار وکړ اودیوشمېر راپورونو پربنایې هغه پوستې پاکستاني پوځیانو ته پرېښودلې .

له دې څخه علاوه کله چې کرزی په دې وروستیو کې له اروپایي هیوادونو ته په سفر روانېده یوه ورځ وړاندې یې خپلې ادارې ته فرمایش ور کړ چې له امریکا سره دامنیتي تړون هغه مهم ټکي اودلایل چې دده په وینا په افغانستان کې په سوله اوثبات تمامیږي برابر کړي اودرسنیو په اختیار کې یې ور کړي ، ورسره جوخت یې دامریکا ولسمشرهم ته داسې لیک ولیږه چې ( دګوشتې ولسوالۍ ) له شخړې سرټکول شوی و اودحل غوښتنه یې ترې کړې وه .

داټولې هغه حربې اودامونه دي چې امریکایي دکابل داجیر رژیم دلاسپوڅوپه توسط په سیمه کې خورول غواړي اوبنیادي هدف ترې دامریکایي منافعو دتحقق اوساتلو لپاره په افغانستان کې هغه امریکایي ځالې اواډې دي چې هغه بله ورځ کرزي په ډاګه پرې شخوندوواهه چې امریکایانو ترې غوښتنه کړې ترڅو دافغانستان په حساسو نقطو کې دنهو سترو پوځي اډو دجوړولو اجازه ور کړي ، نو ویلای شو چې دګوشتې شخړه دامریکا دپور ته دام چې هغه پوځي اډو منلو او جوړولو ته شرایط برابرول یوه پیلامه ده .

موږ په صراحت وایو لکه څنګه چې امریکا دتېرو دیارلسوکلونو په اوږدو کې دافغانانو یوه مهمه اوبنیادي مسئله که هغه اقتصادي، سیاسي، امنیتي ، تعلیمي، صحي اودبیارغونې په برخه کې که وکتل شي حل نکړه بلکې نورې یې زیاتې اوپرېمانه کړې له دې وروسته خو هیڅکله داسوچ اوفکر بایدونشي چې امریکایان دې دافغانانو دکومې سترې ستونزې اوشخړې هم په حل کې مرسته وکړي اویادې دافغانستان اوپاکستان ورونو ملتونو ترمنځ دخیر اوبه توی کړي بلکې که وس یې بر شي نوربه یې ترمنځ دتفرقې اوبدبینۍ تخمونه شیندي .

پاکستان ته موهم مشوره داده چې په لوی لاس سرحدي شخړو ته لمن وهل پر ته له دې چې ګټه یې دافغانستان اوپاکستان ستر دښمن امریکا ته ورسیږي بله کومه لاسته راوړنه اونتیجه نه لري ،ښه به داوي چې دافغانستان له روان کمزوري اوپه اشغال کې دګیر حالت څخه بده استفاده ونشي . اودامریکا دحضور دپاره په لوی لاس شرایط اماده نشي .

# دخـالـد بن ولـيـد رضی الله عنه عـمـلـيـات

(احمدشاه وردګ)

په صدر اسلام کې دا خبره دهر لوی او واړه په خوله وه چې کوم جنګ کې خالد بن ولید رضی الله عنه ګډون ولری هغه جنګ کې ماتـه نه خوړل کیږی ، حتی هغه وخت چې لا خالد رضی الله عنه په اسلام مشرف شوی هم نه وو د احد د غزا پروخت پرهغو کې پنځوسو تنو مجاهدو صحابوو دشا له اړخه غلچکه حمله وکړه چې د احد له غره څخه راښکته کیدل سره لدی چې دغه راښکته کیده د رسول الله صلی الله علیه وسلم د صریح امر مخالفت وه، دا سبب و چې داحد د جنګ په دوهم پړاو کې مسلمانانو پـه عارضـی ډول ماتـه اوخـوړه دغـره لـه پاسـه تقریبـالـس یـا دولـس تنـه پاتـه شول او ټول یې پـه شـهادت ورسیدل کلـه چې ابوسـفیان راغی نو خالد ته یې وویل ( النصر نصر ک یا خالد) فتحه ستا فتحه ده ای خالده.

په هر صورت تر دې جګړې وروسته خالد رضی الله عنه اسلام راوړ او مسلمانان لا پیاوړی شول ، دی کې شک نشته چې خالد رضی الله عنه یو پوخ او مدبر عسکری زیر ک قاید وه، په هر جنګ کې به یې له خاص تاکتیک څخه کار اخسته او سوبه به یې تل په برخه وه.

دا ډول پـه زغـر ده ویـلای شـو چـې د اسـلامی امـارت پـه امـر سـره د سږ کال عملیات چې د خالد بن الولید رضی الله عنه پـه نامـه نومول شوی ان شاء الله تـر تیـر و جهادی کلونوپـه نسبت بـه لا زیات او پـه زړه پوري نتـایج ولـري بلکې ویلی شو چې پـه لوګر او نورو ولایـاتو کې تـازه بیـړنی عملیـات ښـایي دهمدغـه مبار کو عملیاتو د پیلامي یوه برخـه وی، مجاهدین وخـت پروخـت جنګـي تاکتیکونـه بـدلوي او صلیبی دښمن له وړ

وړ اندیښنونو سره مخ کـوی، دغـه وجـه ده چې صـلیبیان خبـر و اتـرو تـه حاضـر دی او وخـت پروخـت دلتـه او هلتـه کنفرانسونه جوړوي تـر څـو څنګـه وکولاشی طالبـان قـانع کـړی ، خـو د طالبانو په هر ډول خبرو کې اساسي



په حمص کې د خالد بن ولید ﷺ جامعه چیرته چې هغه رضی الله عنه دفن دی.

شرط دا دی چې بهرنی قواوي به له ګران هیواد افغانستان څخه پرته له قیده او شرطه وځي پس له هغې امکان لری چې په نورو اړونده مسائلو

خبرې اترې وشي، د سږ کال عملیات هم د هغه تاکتیک برخه ښکاري چې اسلامي امارت غواړي په واضح ډول امریکایان او دهغوي ایتلافیون پدې وپوهوي چې پر ته له وتلو بله لاره نلري، دهیواد د ازادی او اسلامی نظام تر قائمیدو پوری به ان شاء الله جهادي عملیات ادامه وکړی ان شاء الله سږ کال به د دښمن لپاره تر نورو کلونو هم زیات غموونکی وي او دوی به له وړ وړ ستونزو سره دهیواد په ګوټ ګوټ کې مخامخ کیږی، ښه به دا وي چې غربیان خپل وتل چټک کړي او افغانانو ته خپل حقه حق او حقوق وسپاري، له دوی سره به تر هغه مزاحمت او جهاد روان وي تر کومه چې دوی په افغانستان کې پاته وي، بلکې پر غربیانو به د جنګ او خطر کړی ورځ په ورځ راتنګیږی او داسې وخت به راشي چې دوی دوتلو لاره هم پیدا نکړی او د دوهم ویتنام تاریخ به یوځل بیا تکرار شي

دا چې صلیبي یرغلګران او دهغوي په سر کې یهودان او نصاری په اصل او فصل دواړو کې له خبث او فساد نه ډک دي، دا وخت کوښښ کوی چې دمجاهدو طالبانو او ملت تر منځ یو ډول فاصله رامنځ ته کړي، امریکایانو داسې ملیشی او خاص امنیتی ځواکونه تر یوه حده داربکیانو ترنامه او په ځینو حالاتو کې حتی د مجاهدینو! په شکل کې جوړې کړی چې دخلکو ویرول، وژل، او غلاکول یې عمده صفتونه دي، دې ته باید پاملرنه وه شي چې زمونږ له مقدس نوم او نشان څخه نور غلطه ګټه پور ته نکړی سږ کلنی عملیات چې دخالد بن الولید تر نامه لاندې پیل شوی او پیل کیږی دا به له تیرو جهادي عملیاتو سره خامخا توپیر لری ځکه چې پدې مبارکو پسرلنی عملیاتو کې به له جدا تاکتیکونو څخه کار اخستل کیږی چې یوه کوچنی بیلګه به یې زه په جرات سره دوروڼو مخی ته کیږدم او هغه دا چې داسې ښکاري ان شاء الله طالبان به د صلیبي دښمن او ځینو کورنیو خطرناکو او زهرجنو منافقینو یوه غټه شمیره جنګي اسیران لاسته راوړي چې په هر لحاظ به اهمیت ولری بلکی دجنګ رخ او شکل به بدل کړی، دا یوه کوچنی نمونه وه چې ما پرې وضاحت وکړه.

صلیبی دښمن او داخلي منافقین هم لدې خبر شوی چې سږ کال به طالبان دخالد بن ولید تر نامه لاندې عملیات پیل کوی پدې اړه ځینو مغرضو ویب سائیډونو او هم په کابل کې ځینو محلي ورځپاڼو خپرونې کړې او دا عملیات یې افغان مزدور نظام او د دوی بادارانو ته یو ستر ګواښ بللی دا خپرونې او دا خبرونه ښیې چې دښمن تر کومه حده وارخطا دی، دښمن ځکه وارخطا دی چې دطالبانو جهادي عملیات ناڅاپه او پوره خطرناک وی، دښمن یې ځای، وخت او هدف نشی معلومولی ځکه خو هم امریکایان او هم ددوی مرتد اندیوالان له اندیښنو سره مخ دي د سږ کال عملیات به ځکه قوي او پریکنده وی چې صلیبي دښمن په روحی او معنوی لحاظ او هم په مادي لحاظ مات شوی او داخلي منافقین لا تر صلیبیانو دمخه کډه بارول غواړي دا مهال په افغانستان کې په لوړه کچه سوداګری، دځمکو رانیول او د کورونو اخستل په ټپه ولاړې دی، دا ټول هغه څه دي چې د طالبانو لخوا په لاره اچول شوي عملیات یې ثابتوي او دسږ کال عملیات څرګنده پیغام لری او هغه دیرغلګرو وروستی ماته ان شاء الله.

## .حضرت عمر بن عبدالعزیز یو پرهیزګار خلیفه و.

یوه ورځ ډېره سخته ګرمی وه. هغه پر کار بوخت و او یوه خادم(نوکر) ور ته پکی واهه. نوکر ګرمۍ ستومانه کړ او ویده شو.

عمر ورو له خپل ځایه پورته شو، له ویده هلک ... څخه یې پکی واخیست، او هغه ته یې پکی وهل پیل کړ. د پکی په ساړه باد هلک په ژور خوب ویده شو.

څه وخت وروسته چې هلک راویښ شو. ددې پر ځای چې دی خلیفه ته پکی ووهی، وئې لیدل چې خلیفه ده ته پکی وهی. هغه وارخطا شو او ووېرېد. له خلیفه څخه یې ببښنه وغوښته او وئې وویل: ببښنه غواړم. زه ویده شوم، پوه نه وم چې ما څه کول.

خلیفه پر هغه ډېر مهربان و. هغه موسکی شو او وئې ویل: " ته ولې بې واره (وارخطا) شوې. ته هم زما په څېر انسان ئې. که ته زما خدمت کولای شې، نو دا زما دنده هم ده، چې ستا خدمت وکړم. زه چې ګرمۍ ناآرامه کړی وم، تا راته پکی واهه او چې بیا زه پوه شوم چې ګرمۍ ته ناآرامه کړې، نو ما در ته پکی وواهه.

# همت ته دې سلام او پر لوړ عزم دې آفرین !

شهیدزوی

هو ! پسرلی بیا راغلو ، ډېر ښه راغلو او داسې پسرلی دې پر موږ هر کله راشي. دنوي احساس او نویووولولو سره مل دجهاد پسرلی ، دیرغلګرو پرضد داسلام دخیرالقرون دستر سپه سالار اوسترفاتح په نوم دپیل شو یو نویو عملیاتو پسرلی ، ددښمن دوېرولواومرعوبه کولو پسرلی ، دقربانیوو پسرلی ، دسنګرونو د بیا آبادولو اوګرمولوپسرلی، دفتوحاتو پسرلی، دازادۍ پسرلی، د دښمن دسرونودشیندلو پسرلی، ددښمن سره په ګرمو سنګرونو او سترو معرکو کې د مجاهدینو دپاکو وینو توېدلو او شهادتونو پسرلی ، دخپل تېرزرین تاریخ د راژوندي کولو پسرلی ، دښمن ته د عبرت درس ورکولو پسرلی ، او ورنه دمسلمانانو پرضد دټولو کړو ظلمونو دحساب اخستلو او دمسلمانانو دزړونو یخولو پسرلی ، داشغالګرو دماتو او دمجاهدینو دنویو فتوحاتو پسرلی .

یاالله ! تاپر موږ ډېر لوی فضل وکړ ، موږ کمزوروته دې خوراستر طاقت راوباښه ، که موږ شپه او ورځ تا ته په سجده پرېوځو ستا شکربه ادانکړای شو ، یو هاغه د امریکا په مشرۍ کې دنړیوال ستر صلیبي اتحاد له لورې زموږ د ګران هېواد داشغال ړومبۍ شپې ورځې وې چې موږ یکې داسبابو او وسایلو په لحاظ ددښمن په پر تله ډېر کمزوري وو ، شمېر مو لږ و ، دشپې تېرولو ځای مو نه موندلو ، په نړۍ کې هیڅوک پنا راکولو ته حاضرنه و ، ټوله نړۍ دامریکانه په خوف کې وه او په سیمه خو یې دومره وېره ناسته وه چې دلته داتومي ځواکونو لینګي هم له وېرې رپېدل او ګومان یې هم نه شو کولای چې ګینی له امریکا نه به بچ پاتې شي ، هیڅا هم د ډاډ خبره نه شوه کولای له یولورې هم اطمینان ا وحوصله نه وه بلکې هرچا دمجاهدینو د وېرولو کوښښونه کول ، د هېواد داشغالولو نه پس مو دښمن په ډېر غرور کې و، ویل به یې : یو طالب به رانه هم پاتې نه شي د هرې سوړۍ نه به یې راوباسو ، وبه یې نیسو یا به یې ووژنو .

په نړۍ کې یقین همدا جوړ و چې نور به په افغانستان کې د طالبانو او مجاهدینو نوم هم پاتې نه شي او نه به څوک په نړۍ کې دجهاد نوم واخلي . لنډه داچې حالات ډېر ناسم وو دښمن د طالب د نوم د ورکولو په فکر کې و او دوستانو سره یې ددښمن د شرنه دحفاظت او مصئونیت غم و.

خو طالبه !ستا همت ته سلام او پر لوړ عزم دې آفرین ، حوصله دې له لاسه ورنکړه ، دلویو اتومي ځواکونو دستر اتحاد نه ونه وېریدې ، ددښمن پر مختللو جنګي وسایلو مرعوب نکړې ، د دوستانو په جامه کې دمنافقانو د بزدلۍ نه ډکو مشورو او ددښمن تبلیغاتو پر تا منفي اثر ونکړ ، دښمن ته دې سر ټیټ نکړ ، دسازش ښکار نه شوې او نه دې هم دحالاتو سره ځان برابر کړ بلکې په همدې ناسمو حالاتو کې دې په ډېر لوړ عزم سر راپورته کړ ، په خپل رب دې توکل وکړ او دجهاد توغ

دې یوځل بیا پر پاکې خاورې رپاند کړ ، پر دین ، ملت ، خاورې ناموس دې غیرت وکړ ، د خپل سر د ساتنې پر ځای دې خپل خوږ ځان قربانۍ ته وړاندې کړ .

حقیقت دادی چې دقربانیوو په تاریخ کې دې دځان لپاره لوی باب جوړ کړ نو الله تعالی چې غیرتي ذات دې پر تا یې غیرت وکړ ، ستا سره یې مرسته وکړه ، ستا په پر تله ستا نه ډېر ستر دښمن یې در ته راوپرځولو او دشر مونکې ماتې سره یې مخامخ کړ .

هغه دښمن چې دمارانو ښامارانو او نورو انسان دښمنو ژویو په نومونوبه یې ستا پر ضد عملیات اعلانول او ستا دله منځه وړلو خبرې به یې کولې اوس یې مورال دومره غورځېدلي چې پر تا درعب اچولو تصورهم نه شي کولای اونه په کوم نوم د عملیاتو پیلولو جرأت کولای شي بلکې ددفاع په داسې کمزوري حالت کې دی چې اوس ته دهرسوړ ژمي پروتلو او دپسرلی په رارسېدلو ددښمن پر ضد دعملیاتو دتېزولو په موخه خپلو عملیاتو ته نوي نومونه ورکوې چې هرنوي د تېر په ځېر ډېر قوي ، ددښمن ملاماتونکي او دومره ورخطاکوونکي وي چې دښمن یې هر ځل دې اعتراف کولو ته اړ کړی چې داځل به پسرلنی عملیات د تېر نه سخت وي چې موږ ورته چمتووالی لرو .

هو ! وړاندېنو ټولوپسرلني عملیاتو کې به هر راتلونکي دتېر نه زیات قوي اوسوبمن وو خو درسول صلی الله علیه وسلم د یو جلیل القدر صحابي او داسلام دلوی فاتح او سپه سالار خصرت خالد بن ولید رضی الله تعالی عنه په نوم په دې اعلان شویو عملیاتو کې خو د نوم اثار او بر کتونه خوراډېر روښانه دي ، په ډېر قوت یې پیل وشو او د فتحې لوی زېري یې له ځانه سره ولرل ، دنوم داعلان سره سم چې په ټول هېواد کې عملیات تېز شول نو پکې ددښمن د سترو مالي او ځاني تلفاتو ا وګڼ شمېر ټانکونو او فوځي موټرو تخریب هم له پامه نه شي غورځېدای دا هم لوی بریالیتوب دی خو یواځې په ۸ ورځو کې دطالبانو په لاسونو د ۳فوځې الوتکو راغورځېدل او ویجاړېدل بیا ډېره ستره لاسته راوړنه ده .

دروانې یانې داپریل په ۲۲مه نېټه د لوګر زمریانو یوه الوتکه په زور بیړنۍ ناستې ته اړ کړه چې پکې ناست ۱۱ بهرنیان یې ژوندي ونیول ، خوندي ځای ته یې انتقال کړل او الوتکه یې وسوځوله ، ددې پېښې ایله ۵ ورځې تېرې شوې وې چې دزابل ولایت شاجوی کې اتلوطالبانو دامریکایې ځواکونو پورې تړلې دناټو فوځې چورلکه رانسکوره کړه چې چورلکه په بشپړه توګه تخریب اوپکې ناست ۷امریکایې فوځیان ووژل شول او پرون داپریل په ۲۹مې نیټې چې طالبانو په ټول هېواد کې پردښمن ۱۱۸ حملې کړي دي دباګرام هوایی ډګر(چې دامریکایې فوځیانو ترټولو ستره اډه ده ) نه پورته شوې بوینګ ۷۴۷ ډوله باروړونکې طیاره په کمین کې ناستو اتلو طالبانو وویشته په هوا کې یې اور واخیست ا وپکې ناست ۸تنه امریکایان وسوځېدل داپه داسې حال کې ده چې داپریل په ۲۶ مه نېټه د کندهار هوایې ډګر چې د ناټو یوه ستره فوځې اډه ده پکې سخت باران ، هوا او ګلۍ د ناټو ۵۰ چورلکې دومره سختې زیانمنې کړې چې هوا ته له پورته کېدو وړتیا یې هم له لاسه ورکړه ، په یوځل د ۵۰ چورلکو زیانمن کېدل هم دښمن ته خورا ډېر ستر تاوان دی خو چې د قدرتي آفت په نتیجه کې داتاوان دښمن ته اوښتی نو دا د طالبانو لاسته راوړنه نه ګڼل کېږي خو په ۸ ورځو کې دطالبانو په لاس د ۲ چورلکو او یوې بوینګ طیارې رانسکورېدل او پکې دټولو ناستو تنانو وژل کېدل یا ژوندي نیول کېدل خورا ډېره ستره لاسته راوړنه ده .

په روان جنګ کې چې موږددښمن د نورو سترو سترو تلفاتو ترڅنګ د داسې بې شمېره چورلکو له منځه تللو شاهدان یو نو موږ ته یواځې په ۸ ورځوکې د ۳ طیارو رانسکورېدل عادي خبره ښکاري خو رښتیا داده

چې دا عادي خبره نده ، دحربي وسايلو په لحاظ د کمزورو طالبانو په لاس د نړۍ تر ټولو ستر زبرځواک ته په کابو يوې اوونۍ کې دومره ستر تاوان وراړول نړيوال ډېر لوی ګڼي او بيا خصوصا داسلامي نړۍ هغه هېوادونه چې پکې داشغالګرو امريکايانو اډې دي خو وربانديې د يو ډز کولو امکان هم په ښکاره نه تر ستر ګو کيږي ، دداسې هېوادونو مسلمان ولسونه دې ته ور ته لاسته راوړنې ډېرې لويې فتحې ګڼي له حده زيات پرې خوشحالېږي نو ځکه د اميد ستر ګې هم ټول طالبانو ته وراړوي او دمستقبل ټولی هيلې هم د همدوئ سره تړي .

هو ! طالبه تاته به ځان وړوکی ښکاري ، تاسره همدا ښايي چې ځان غټ ونه ګڼي او د تکبر ښکار نه شې خو حقيقت دادی چې مسلمان ملت تاډېر ستر او ټولې اسلامي نړۍ ته نجات ور کونکی ګڼي ، مسلمانان ټول پدې پوهېږي چې داسلامي نړۍ پر ضد په اعلان شوي جنګ کې تا



دوينو او سرونو ډېره قرباني ورکړه او اسلامي نړۍ دې د وحشي دښمن له ستونې تېرېدلو او سترې رسوايۍ نه وژغورله تا دمسلمان ملت د عزت پګړی نه يواځې داچې له غورځېدو و ژغورله بلکې دعزت شمله دې يې هم له تمې زياته ډېره هسکه کړه نوځکه مسلمان ملت تا دخالد بن وليد رضی الله تعالی عنه اصيل بچی کڼی ، مسلمان

پلورونه پر تا اعتماد کوي اودنړۍ دهر ګوټ‌نه ستا د بيرغ لاندې قرباني ته خپل خواږه بچي را استوي ، دامت مينډې ستا د کاميابۍ او حفاظت لپاره شپه او ورځ لپی لپی دعاګانې کوي ، په غصب شوي فلسطين کې د وحشي يهودانو يادنړۍ دنورو ظالمانو په زندانونو کې زندانيانې خوينډې تا بل محمدبن قاسم او معتصم بالله ګڼي اوهمداتاته ستر ګې په لار دي ، بيت المقدس او مسجد اقصی درته د ايوبي په نظر ګوري ، قرطبه او غرناطه درنه د طارق د تاريخ ژوندي کولو تمه لري ، د جبر او وحشت ټولو ماڼيوو ته دې هر مشر فاروق اعظم ښکاري نو ځکه درنه په لړزان دي او هره بتخانه دې غزنوي بولي نو ځکه ستا شتون په نړۍ کې نه شي زغملای ، ستا له منځه تلل غواړي اوددې لپاره يې پر ځان شپه او ورځ يوه کړېده ، دابېله خبره ده چې الله تعالی ستا حفاظت کوي اوددښمن ټول شوم پلانونه شنډوي .

ځر ګنده ده چې ته به پوهېږې او بايد پوه شې او داخبره له ياده ونه باسې چې ترڅو خپلو عالي اهدافو ته ژمن يې دخپلو اسلافو په لار روان وې ، دماديا تو سيلاب لاهو نکړې ، په واحد قيادت راټول يې ، دانتشار ښکار نه شوې او دښمن د دسيسو نه دې ځان وساتلو نو ستا پر ضد به ددښمن يوشوم پلان هم برياليی نه شي ، ته به تل سر لوړی يې ، شمله به دې هسکه وي او کاميابي به دې هروقت په نصيب وي ، اميد د ی چې داسلامي نړۍ حالت ، دوخت حساسيت او ستا نه دامت اميدونه به ستا مخې ته وي ، ته به هرقدم په ډېر احتياط پور ته کوې اوپه هره پريکړه به ښه غور کوې ، ستر مسئوليتونه اولوی کارونه دې پر مخ دي ، دامت خواخوږی او د عاګانی تا سره دي ، دامېدونو ستر ګی يې تاته دي ، نوراتلونکی دې له هيلو ډک دی اوستره سوبه دې استقبال کوي . ان شاءالله

شیخ القرآن والحدیث حضرت مولانا قاری حبیب الله صاحب :

# کفر ملت واحده هست فرقی نمی کند از شرق باشد ویا از غرب

## حصهٔ ضروری علوم عصری باید شامل نصاب درسی تعلیمات اسلامی شود

گرداننده مصاحبه خبیر احمد مجاهدم

بسم الله الرحمن الرحیم

جناب شیخ القرآن والحدیث حضرت مولانا قاری حبیب الله صاحب!

السلام علیکم ورحمت الله وبرکاته.

سؤال : مجله خرک افتخار می ورزد که باعالم مجاهد وجیّد کشور همچون شما مصاحبه می نماید ،لذا آرزومندیم که چند لحظه باما باشید.

وعلیکم السلام ورحمت الله وبرکاته

جهان سپاس از اینکه مسولین کمسیون فرهنگی امارت اسلامی افغانستان شب وروز تلاش میورزد تا اینکه واقعیت ها وحقایق که در کشور ما میگذرد بر ملا ساخته در خدمت مجاهدین قرار دارد

**۱ـ سوال:** محترم شیخ صاحب اگرلطف نموده در ابتدا پیرامون زندگانی شخصی خویش چند سخن ارائه بفرمایید که در کجا وبه کدام تاریخ چشم به جهان گشوده اید ؛وهمچنان سیرعلمی ودینی خود را درکجا آغاز وچه وقت به پایه اختتام رسانیده اید ؟

**جواب :** من حبیب الله فرزند ملا دولت در سنهٔ {1327}هجری قمری در ایبک مرکز ولایت سمنگان چشم بجهان گشودم تعلیمات ابتدایی را در نزد برادر بزرگم الحاج مولوی عبد الغفار مرحوم طی نمودم سپس کتب مروجهٔ تعلیمی رادر نقاط مختلف کشور عبارت از در دشت ارچی قندوز از نزد مولوی صاحب غازی ودر تخار مدت هفت سال در نزد مولوی صاحب محمد یعقوب {گنجک بیگ} و بعدا درفاضل بیگ کابل در نزد مولوی صاحب فاضل بیگ عدهٔ از کتب درسی را خواندم سپس عازم مملکت پاکستان گردیده دورهٔ کبری را در دارالعلوم حقانیه اکوره ختک از فیوضات علمی مشایخ کرام هر یک شیخ صاحب عبد الحق ومفتی صاحب محمد فرید وصدر صاحب عبد الحلیم ومولانا صاحب عبدالعلی { رح }مستفید گردیدم وبعد از دستار بندی وفراغت بار دیگر جهت ارتقای استعداد علمی در چکیسر رفته در نزد مولانا عنایت الله چکیسری بعضی از کتب تکمله را تکرراً خواندم بعدا در دیولی سوات مدرسهٔ را بنام احیا العلوم تأسیس نموده ومدرسهٔ را در کانجو ومدرسهٔ را نیز درشهر مینگور سر پرستی مینمودم ودردارالعلوم حنفیه کانجودر سال {2003}میلادی درس صحاح سته را بفضل الله آغازنمودم ومدت چهار سال است که در کیمپ نمر شش هریپور بدرس حدیث مصروف میباشم

**۲ـ سوال :** محترم مجموعاً دوره تحصیلی وعلمی تان چند سال طول کشید ؟

**جواب** : دورۀ تحصیلی بنده مجموعاً به پانزده سال طول کشید.

**۳ـسوال**:آنعده ازاساتیذه محترمیکه نقش عمده درپرورش وآموزش فنون وعلوم دینی شماداشتند وجنابتان ازبرکات وفیوضات شان بهرمند شده اید اگرممکن باشداز ایشان نام ببرید ؟

**جواب** : استاتذۀ که در تربیت علمی و معنوی بنده رول مهمی راایفا نموده اندعبارت از الحاج مولوی صاحب عبدالغفار ومولوی صاحب خواجه ،مولوی صاحب غلام رسول ،مولوی صاحب محمد الله ،مولویصاحب عصام الدین،مولویصاحب غازی،مولوی صاحب محمد یعقوب ،مولویصاحب شاه نظر، مولوی صاحب فاضل بیگ، حضرات مشایخ آنوقت دارالعلوم حقانیه که قبلاً تذکر گردید ومولانا صاحب چکیسر{رحمهم الله} هستند.

**۴ـسوال**:محترم اگر در دوران تحصیل وفراگرفتن علوم خویش کدام خاطره جالب ومثبت داشته باشید همراه خوانندگان گرامی شریک سازید بهتر خواهدبود؟

**جواب** : در جواب این سوال شما باید بگویم که دوران تحصیل برای یک طالب العلمیکه مقصد وغایه اش آموختن ذخایر علمیست بهاریست برگشت ناپذیر

**۵ـسوال**: رمزکامیابی ونکات بسیار مهم وضروری برای یک طالب العلم درآوان فراگیری وآموزش علوم شرعی چه خواهدبود؟

**جواب** : دراین رابطه بر داشت بنده اینست که معیار ارتقاءعلمی یک طالب العلم امور متعدد میباشد اگر طالب العلم واجد اوصاف و شرایط ذیل بوده باشد سطح علمیش بلند رفته در مرتبۀ مقبولیت قرار میگیرد الف: طالب العلم قبل از اینکه درعرصۀ علمی قدم بماند نیت خودرا تصحیح نموده مقصد اصلیش خاص رضای الله{ج} باشد

ب: طالب العلم در دوران تحصیل باید تمام نیرو وقوت خودرادر راستایی علم خرچ ومصرف نماید سوم: قبل از رسیدن در تحصیل کتب حدیث وتفاسیر بعلوم آلیه یعنی صرف،نحو،معانی وغیره علوم ضروریه ید علیا داشته باشد تا اینکه درسبک عبارت وفهم معانی برایش کمک کند.

چهارم:در عبادات وآداب وفضایل خود رامتصف نموده هر حدیثی را میخواند باید بآن عمل نماید، ابراهیم بن اسماعیل یک محدث میفرماید {کنانستعین علی حفظ الحدیث بالعمل به}یعنی بودیم مدد میخواستیم بر حفظ حدیث بواسطۀ عملکردن بآن حدیث.

پنجم: طالب العلم باید باساتذه احترام داشته باشد چونکه تعظیم استاد عین تعظیم علوم می باشد چنانچه بیهقی از حضرت عمر {رض} روایت میکند تواضعوا لمن تعلمون منه}یعنی انکساری را اختیار کنید در مقابل کسیکه از آن علوم را حاصل میکنید .

ششم: از تکبر و حیا باید اجتناب کرده شود چونکه اگر از روی حیا وکبر مسایل را از استاد سوال نکند از علم بی بهره میماند .

**٦ـسوال**: جناب شیخ صاحب ! اگر در رابطه به دروس و سطح ذهنی وعلمی طلاب روشنای باندازید که از امسال تا به 10سال قبل چه اندازه تفاوت داشته؛آیا این تفاوت جنبه مثبت دارد یا خدای نخواسته منفی وعلت چیست؟

**جواب** : در این رابطه باید بگویم که استعداد علمی طلاب در همین آوخربعلت های ذیل رویهمرفته روبخرابی می گراید الف: خواندن طالب العلم کتب درسی را در مدت کم ورقابت های مدرسه ها که دوره های دو ماهه ویا سه ماهه را شروع نمودند کتبیکه باید درسال خوانده شود در ظرف دو ماه میخوانند ازفهم نکات ودقایق کتاب محروم مانده درحوالی قال وقیل میچرخند ونتیجتاً در حین فراغت قادر بتدریس وتصنیف نگردیده جهت امرار معاش خود مشغلۀ دیگری رااختیار میکنند.

ب: آلوده بودن ماحول وتمایل به مختراعات جدیدۀ غربی ها از قبیل تلفن های موبایل در حقیقت استعمال

این وسایل در حد غیر ضرورت آفت بزرگیست در ترقی علمی و کمسیون تعلیم و تربیهٔ امارت اسلامی در همین آواخر نسخهٔ را بدست گرفته در ارتباط نصاب تعلیمی ومفردات درسی و سال تعلیمی اگر در تطبیق آن مجریان مدارس موافقت کنند شاید نتیجهٔ مثبتی در عرصهٔ تعلیم وتربیه بدست بیآید .

۷ **سوال**: به نظر شما علوم و مهارت های عصری، مثل کمپیوتر و مانند آن تاجایکه بامزایای دین مبین اسلام مخالفت نداشته باشد آموزش و فراگرفتن آن در عصرکنونی برای یک طالب العلم دینی چقدر ضروری پنداشته میشود؟

**جواب**: در حقیقت ساینس وتکنالوژی ودیگر علوم عصری از کتب آسمانی گرفته شده متأسفانه دشمنان اسلام ازآن بر علیه مسلمانان استفاده نمودند اما در مدارس دینی فلسفهٔ قدیم یونانیهاکه بیشتر جنبهٔ نظری دارد مورد توجه جدی واقع گردیده از حد ضرورت زیاد تر خوانده میشود در آن تغاول صورت میگیرد نظر بنده اینست که حصهٔ ضروری علوم عصری را شامل نصاب درسی تعلیمات اسلامی کرده شود .

۸ **سوال**: نقش و اهمیّت تالیف و ترجمه کتب ورسائل دینی برای رشد وتعالی افکار عمومی در جامعه اسلامی به نظر شما چیست؛ وعلت چیست که درین راستا علماء وقشر دینی ومذهبی کشورمان تمایل اندکی دارند ؛ آیا جناب شما کدام تالیفات دارید؟

**جواب**: دراین رابطه باید گفت که ذخایر علومیکه بشکل کتب ورساله دردسترس ما قرار دارد درس وتدریس میکنیم همانا نتیجهٔ تألیفات وتصنیفات سلف وعلمای گذشتهٔ ما بوده ومهمترین راهیست درحفاظت معلومات علمی و دینی چنانچه حضرت عمر بن عبدالعزیز دراین جهت ابو بکر بن حزم را امر نموده گفت {انظر ما کان من حدیث رسول الله صلی الله علیه وسلم فاکتبه فانی اخاف دروس العلم وذهاب العلماء} بناً علماء در جنب درس شان اوقاتی را برای تألیف وتصنیف معین نمایند .

- 9**سوال** : جناب شیخ صاحب!

دررابطه به جهادومبارزه مقدسکنونی دربرابرقوّت های خارجی درافغانستان طبق ارشادات دین مبین اسلام توضیحات بفرمایید؟

**جواب**: شکی نیست که جهاد علیه کفارودشمنان اسلام فرض وضروری میباشد خصوصاً در وقت تجاوز واشغال اراضی مسلمانان.آیات واحادیث نبوی دراین رابطه بصراحت آمده است چنانچه درآیهٔ قرآنی {وقاتلوهم حتی لا تکون فتنة ویکون الدین کله لله}حکم جهاد را دانسته میشود که امر قتال برای همهٔ اهل تکلیف اعم از مرد وزن وپیر وجوان شده است وغایهٔ ومقصد قتال را نیز تعین نموده که عبارت از امحاء کلی اقسام وانواع فتنها است از جملهٔ آن شیوع یهودیت ونصرانیت ، فحاشی، عریانی و سایر فسادات اخلاقی دربین امت مسلمه توسط قدرت های غربی میباشد .

10 **سوال** : تفاوت میان جهاد فعلی وجهاد در برابر تجاوزقشون سرخ شوروی سابق چیست؟

**جواب** : درجواب این سوال شما باید متذکر شوم که کفر ملت واحده هست فرقی نمی کند از شرق باشد ویا از غرب اما در شیوهٔ دشمنی با مسلمانان فرق های موجود میباشد وقتیکه شوری سابق کشور عزیز مارا اشغال نمود نحوهٔ اشغال آن تنها توسل بزور وقدرت بود اما متجاوزین امروزی تمام زراکت وهوشیاری شانرا بخرچ داده با پلان های خطر ناک وارد کشورما گردیدند از یکطرف با وسایل مدرن وپیشرفتهٔ که روس ها آنرا نداشتند یورش برده با قساوت تمام افغان های بیدفاع را بشهادت رسانیدند از سوی دیگربا گسیل نمودن فرهنگ زهر ناک غربی اذهان تودهٔ از افغانان ساده را اختطاف نمودند واز جانب دیگر با مصرف نمودن پول هنگفت کتلهٔ از جوانان بی بصیرت را علیه مجاهدین تحریک نمودند ودیگر اینکه در زمان

اشغال روسها مقاومت را تنها افغان ها نمیکردند بلکه کشور های که منافع شانرا در خطر دیده بودند همنوا با مجاهدین همان وقت کمک های همه جانبه مینمودند اما امروزکفر دنیا همه متحد وممالک اسلامی نیزهم صدا گردیده در مقابل یک قشر ضعیف که غیرالله ج هیچ استنادی ندارد وبغیر توکل هیچ سلاح ووسایلی ندارد اما مجهز با نیروی ایمانی تحت قیادت یک امیر واحد میباشند میجنگند.

11 **سوال**: محترم شیخ صاحب!

به نظر شما رمز موفقیّت هرچه بیشتر در امور جهادی بسطح کشور به ویژه در شمال کشور چیست؟

**جواب**: کلید کامیابی ودفع فتنه های دشمن یگانه بچنگ زدن بفرامین الهی وعمل کردن به ارشادات نبوی{ص} میباشد چنانچه الله متعال میفرماید {فمن اتبع هدای فلا یضل ولا یشقی} یعنی کسیکه پیروی از قرآن وسنت میکند در مکر هیچ مکاری فریب نمیخورد از شقاوت وذلت نجات پیدا میکند وقرآن وسنت اکیداً به اخلاص ، استقامت، وحدت یکپارچگی، عدالت اجتماعی، قیادت سالم ومدبرانه واطاعت امر میکند.

12 **سؤال**: بعنوان آخرین پرسش اگر به مردم متدین صفحات شمال کدام پیامی ویژه داشته باشید مجله ثرک درخدمت شماست

**جواب**: ملت غیور شمال چنانچه در ادوار مختلف در مقابل هر متجاوز وزور گوی شهامت وغیرت خودراثابت نمودند امروز نیز همانند نیاکان شان درمقابل دشمن مشترکه با مجاهدین دیگر ولایت ها شانه بشانه قیام نموده چنان درس عبرت بدهند تااینکه بار دیگری این قسم هوس های بیجاراکرده نتوانند.

تشکر

## باور، وفا او ترحم!

باور، په وعده وفا او ترحم د مسلمانانو له لوړو خویونو څخه بلل کېږي:

وايي چې يوه مسلمان خليفه خلک را ټول کړي وو او غوښتل يې چې په يوه کس باندې قصاص پلی کړي، سړي پاچا يا خليفه ته وويل چې دومره وخت راکړه چې زه لاړ شم او خپل ماشومان چاته ور وسپارم ځکه زه په کور کې څوک سرپرست نه لرم ، پاچا ورته وويل چې څوک به ضامن راکړې چې ته بيرته راځې، هغه څلورو خواوو ته وکتل خو هيڅوک يې هم نه پيژندل، له خلکو نه يوه آ...واز وکړ چې زه يې ضامن يم، سړی لاړ، له ټاکلې مودې څخه وخت تير شو او سړی را نه غی، پاچا ضامن را کش کړ او ورته وېويل چې اوس نو په تا باندې حکم جاري کوم، په دې وخت کې هغه په منډه منډه را غي او عذر يې و غوښته چې زه د خپل تاخير په اړه ښښنه غواړم، پا چا له ضامن څخه پوښتنه وکړه چې آيا تا دا سړی پيژانده؟ ضامن ورته وويل چې نه، پاچا ورته وويل چې نو بيا دې څرنګه ضمانت کاوو، سړي ورته وويل چې ما يې د دې لپاره ضمانت وکړ چې هسې نه چې د اسلام دښمنان به بيا ووايي چې د مسلمانانو ترمنځ باور بيخي له منځه تللی دی، بيا پاچا له هغه بل سړي نه پوښتنه وکړه چې ته خو په دې پوهيدې چې دلته قصاص کېږي نو بيا څرنګه بيرته را ستون شوې؟ هغه ورته وويل چې زه د دې لپاره را ستون شوم چې هسې نه چې بيا به د اسلام دښمنان وايي چې د مسلمانانو تر منځ په وعده باندې وفا بيخي له منځه تللې ده، پاچا ته هم دې منظر ډير خوند وکړ او ورته وې ويل چې ما هم د دې لپار ته معاف کړې چې هسې نه چې بيا به خلک وايي چې د مسلمانانو تر منځ شفقت او ترحم بيخي له منځه تللی دی

# عملیات کامیاب طالبان در ازره لوگر

عبدالرحمن درانـــی

چندوز قبل طالبان توانستند که یک پروند هلیکوبتر نظامی اشغالگران را در ولسوالی ازره ولایت لوگر مجبور به نشست کنند ، خبرها حاکی از آن است که یکعدهٔ طالبان طیاره مذکور را در قدم اول مورد حمله سلاحهای خود گردانیدند و آن را در مناطق حساس تخریب نمودند که لحظهٔ چند طیاره عسکری مجبور به نشست شد و فوراً گروه دیگری طالبان آن را محاصره کرد و همهٔ راکبین نظامی آن که گفته میشود چهار تن آنان جنرالان و یا هم دیپلوماتان و یا مسؤلین بلند رتبه امریکایی است به اسارت درآوردند و در وقت کم آنها را به مناطق امن و مطمئن موقتاً انتقال نمودند که شاید در همان روز آنها به مناطق دورتر انتقال یافته باشند ، امریکایان در اظهارات اولی شان گفتند که طیاره مذکور مربوط به قوای ایساف میباشد و فیما بعد گفتند که نه خیر این طیاره ، طیاره ملکی و قراردادی است، در حالیکه همه راکبین و سرنشینان این هلیکوپتر در یونیفارم نظامی امریکا بودند و امریکایان چند روز بعد گفتند که سرنشینان این طیاره اتباع دولت مسلمان ترکیه هستند ، ولی سرچینه های خبری طالبان می افزاید که طیاره مذکور مصروف رسانیدن کومکهای نظامی از باگرام تا به ولایت خوست بود

و دولت مزدور افغانستان که اصلاً از حریم جوی (هوایی) وهم تمامیت ارضی خود خبر ندارد از همچو پروازهای خطرناک و مشبوه اجانب و ایتلافیون غربی خبر ندارد ، فلهذا هر نوع اظهارات دولت مزدور کرزی قابل اعتماد نبوده ، زیرا دولت مزدورکرزی و مطبوعات ورسانه های خبری مربوط این دولت مزدور تحت الحمایه از سرچینه های خبری اشغالگران تغذیه و تقویه میگردد به این معنی که مطبوعات مزدور کابل به صفت لاودسپیکر غربیها ایفای وظیفه می نماید.

اما راپورهای مطبوعاتی طالبان و منابع خبری آنان که به اقای ذبیح الله مجاهد خلاصه میشود کاملاً قابل اعتماد و باور اند ، برادر ذبیح الله مجاهد درین مورد با مطبوعات مصاحبه داشت که خوانندگان محترم آن را در مطبوعات جهانی میتوانند ملاحظه نمایند به هر صورت گرفتاری یازده تن که چهارتن آن شاید تبعه امریکایی باشند و دو تن دیگر آنان ترجمانان و یا هم مسؤلین بلند رتبه استخبارتی افغانی مربوط ارتش امریکا و یا هم وزارت دفاع (پنتاگون) باشند به شمول چند تن دیگر به دست طالبان اسیر شدند که این واقعه یک کامیابی خوب و دست آورد مهم طالبان به شمار میرود ، زیرا اسارت افسران بلند رتبه دشمن در روند جاری جنگ و یا هم صلح در آینده رولی مهمی را بازی خواهند کرد ، مطبوعات غربی بر این حرف که طالبان میتوانند اسیران غربی را به حیث اله فشار بیشتر علیه امریکا و ایتلافیون باقیمانده امریکا کار گیرند اعتراف کرد و شاید طالبان در مقابل این اسیران ودیگر اسیران غربیکه از سالها در دست دارند رهایی آن طالبان مجاهد یکه در گوانتانامو و باگرام و دیگر زندانهای افغانستان وجود دارند طلب رهایی نمایند و چانس خوبی است که طالبان از آن استفاده بزرگی نمایند و هم در خروج کل قوای غربی بلاقید و شرط کارگر خواهند بود.

از اسارت این طیاره معلوم میگردد که در هوا (فضاء) افغانستان حاکمیت همه جانبه اشغالگران و در زمین و خاک افغانستان حاکمیت فعلی طالبان می باشد ، امریکاییها متحیر اند که طالبان با وجود آنکه وسایل محدود نظامی در اختیار دارند چطور توانستند همچو دست آورد بزرگی را بدست آورند و در عملیات و تاکتیک دقیق و هوشیار و بیدار باشند درین شکی نیست که طالبان مجاهد از تاکتیک های جنگی و استخباراتی پیشرفته کار میگیرند همین سبب است که هر ضربه طالبان دقیق و ناچاپ می باشد ، عملیات امسالیکه نام مبارک آن (عملیات خالد بن الولید ) گذاشته شده ، پیوسته به عملیات مبارک البدر و الفاروق (سال های گذشته ) می باشد که دست آورد های بزرگی داشت و اشغالگران را مجبور به رسمیت شناختن طالبان ساخت.

بهر صورت بر میگردیم به موضوع سرنشینان هلیکوپتر نظامی امریکا و ایتلاف غربی در ولایت جهاد پرور لوگر بالخصوص ولسوالی ازره که در جنوب شرق این ولایت قرار دارد باید بدانیم که حکم شرعی همۀ آنانیکه به اشغال و اشغالگران کومک مینمایند همانا حکم اشغال و اشغالگران است و به آنان باید درس عبرت آموخته شود و با آنها معامله مجرمین جنگی و تجاوزگران صورت گیرد ، طالبان که خود منسوب به دین و علم و فقه و مسائل شریعت اند خوب میدانند که در پرتو کلام الهی و ارشادات مبارک نبوی با این اسیران که در خدمت اشغال صلیبی و در کشتار مردم افغانستان به شکل از اشکال سهیم بودند معامله کاملاً شرعی و نظامی نمایند تا برای اشغالگران آخرین درس عبرت باشد ، ولی به نظر همه صاحب نظران از این اسیران میباید در رهای بندیان مجاهد طالبان استفاده اعظمی صورت گیرد که رهای آنان خیلی ها ضرور و مهم بوده و هم در اینده کوشش شود اسیران بیشتر بدست مبارک طالبان مجاهد بیافتند و این کار ان شاء الله سبب خروج کامل غربیان از افغانستان خواهند بود.

## صدقه

حضرت طاؤس (رح) وایي یو کس ومنله چي نن ورځ که می هر څوک اول ولیده زه به هغی ته د صدقی مال ورکوم اتفاقاً یوه ښځه یي ولیده او هغی ته یی د صدقی مال ورکړ - خلکو ورته وویل چي دا یوه ډیره بده ښځه وه او تا هغی ته د صدقی مال ورکړ. دی کس وویل که د دی ښځي نه بعد می بل څوک په نظر راغی هغی ته به د صدقی مال ورکړم

د دی نه بعد ورته یو سړی په نظر راغی او هغی ته یی هم د صدقی مال ورکړ - خلکو... ورته وویل چي دا یو ډیر بد سړی ؤ ، او تاسو بیا هم یو بد سړی ته د صدقی مال ورکړ له دی نه بعد یی وویل اوس که می بل کوم څوک په نظر راغی دا پاتی د صدقی مال به هغی ته ورکړم - لږ شیبه وروسته یی بل یو کس په نظر راغی او متباقی مال یی هغی ته په صدقه کی ورکړ خلکو ورته وویل چي دا کس پخپله ډیر مالدار ؤ او تاسو هغی ته صدقه ورکړه -صدقه ورکوونکی ډیر زیات خفه شو ، دشپي یی خوب ولیده چي ورته وویل شول چي الله جل شانهُ ستا دریواړه صدقی قبولی کړی ، هغه ښځه فاحشه وه خو د ډیری غریبئ او نادارئ په وجه یی فاحشه توب ته غاړه ایښودی وه کله چي تا ورته د صدقی مال ورکړ هغی د دغی بد کارئ نه لاس واخیست

دوهم کس غل ؤ -د ډیر غربت په وجه یی غلا کوله کله چي تا ورته د صدقی مال ورکړ هغه کس هم د غلا کولو نه لاس په سر شو

دریم کس ډیر مالدار سړی ؤ هیڅکله به یی صدقه نه ورکوله ستا د صدقی ورکولو نه هغی عبرت واخیست او وی ویل چي زه خو د دی کس نه ډیر مالدار یم - زه هم د صدقی ورکولو مستحق یم او هغی هم صدقه ورکول شروع کړل: کنزالاعمال




# دسي ای اي ډالراو

# دګوشتې ربړه !

خبیر احمد : ....................

بالاخره دکابل رژیم بې ضمیره اوسپین ستر ګو چارواکو په ډیرویاړ داخبره ومنله چې هو ؛ له زیاتې مودې راپه دیخوادامریکاد( سی ای اې ) دتوراوجهنمي سازمان له لوري ورته په میلونو بې حسابه تور ډالر ورکړل شوي اوتمه لري چې دمرستو دغه ډول لړی دوام پیداکړي .

دیوشمیر امریکایی مامورینوپه وینا، دغه ډالر ددې لپاره دکابل دارګ واکمنو اومشاورینو ته ورکړل شوي ترڅو داداري فساداوتورې مافیاپه هغو لوبو اوجنایتونو چې مستقیماامریکایان پکې دخیل دي پرده واچوي ، همدارنګه دټلوالې مهم جګړماران پرې ژوندي اوسیرابه وساتي اوهم دامریکااو کابل ترمنځ دستراتیژیک اوامنیتي تړون لاسلیک ته زمینه اومنلو ته یې ذهنونه اماده کړي .

دکرزي ادارې ددفتر یوتن پخوانی مامور ( رومان )وایي چې له تیرو ۱۳کلونوراهیسي دسی ای اې دغه پریمانه ډالر ارګ ته راوړل کیدل ، په دې سربیره چې کرزي اومشاورینو ترې بارزه ونډه پورته کوله ، یوشمیر مهم جګړماران لکه جنرال دوستم ، سیاف ، محقق ، عطا، شیرزي ، قانوني ، فهیم اونورلسګونه مشهور امریکایی ګوډاګیان هم بلاناغه پالل شوي او هره میاشت ورته ټاکل شوی رقم ورکړل شوی ، ویل کیږي چې له دغو پیسو څخه تنهاجنرال دوستم ته دمیاشتې ۸۰ زره ډالر ورکړل شوي اوداسې هم شوي چې جنرال په دې پلمه چې په کابل ښار کې امنیتي ستونزې لري نودټول کال یې هم معاش ترلاسه کړی ، دکرزي دغه پخوانی مامور وایی چې تنهاسی ای اې ، نده چې ارګ ته یې هره میاشت بې حسابه اوبې کتابه پیسي په ځانګړ وخلتو کې رالیږلي، بلکې دایران په شمول یوشمیر ګاونډیو هیوادونه هم دخپل اثر اواغیز دساتلو په خاطر دغه ډول پریمانه پیسي چې دده په وینامونږ ورته دپیریانو مرستې ویلې رارسولي .

داخبره خولکه لمر روښانه ده چې دکابل رژیم دواک مهمې څوکی ته چې هر کس رسیدلی اویار سیږي نو اړومروبه په ړومبي قدم کې دسی آی اې ایجنټ اوجاسوس وي اوبیابه دنوموړي شبکې په سلااومشوره دنور وهیوادونو دخاصو ګټودساتنې لپاره دهغوی دغلامی حلقه هم په غاړه کې اچوي، افغانان له سره اوبیخه دغه شرمیدلې اوبې ضمیره څیرې پیژني او افغانان په دې هم پوهیږي چې که دامریکااونورو هیوادواوحلقوله لوري دکابل پلورل شوو واکمنو ته هرفرمایش ورکړل شي که هغه دافغانستان دملي حاکمیت پلورل اوځمکنی تمامیت هم وي دوي هیڅ صرفه نه پرې کوي ، لکه دټوالې مشرانواوخپله کرزی اوټیم یې یوځل یې له امریکایانوداشغال اودامریکاکومی ته دافغانستان دورغورځولو جنایت وکړ او۱۳ کاله یې دوحشي امریکایانو اودناټو په لښکرودافغانانوپه عزت ، حرمت اواسلامي اقدارولوبي اومسخرې وکړي اوپه دوه نیم لکه هیوادوال یې شهیدان اویونیم میلون تنه یې شکنجه کړل اوس غواړي

دستراتیژیک اوامنیتي تړون له لاري افغانستان دامریکا اوګاونډیوهیوادونو دکرغیړنو هیلو اوهوسونو نوی ډګر جوړ کړي !!

دلته دتبصرې وړ ټکی داده چې سره له دغوټولو رسواییو بیاهم دافغان ولس په سترګو کې دکابل چارواکي ورننوزي اوپه ډیر افتخاروایی چې هودوی دسی آی اې ، ایران اوبل هرهیواددااستخباراتي شبکې پټې اوښکاره روپی اخیستي اوبیابه یې هم واخلي ، ځکه چې دوی ورته ضرورت لري

دسی ای اې له لورې دتورو ډالرو راشن ښکاره کړه چې دکابل اجیرچارواکي دافغان ولس اولوږو ګېټو په مقابل کې په هیڅ معامله هم بنداوخلاص ندی ، ډالراوپیسي که هرڅوک ورکوي اوله هرلوري ورته راځی دوی یې ترې اخلي اوپه سرېې نوومعاملوته تیاریږي اوچې کله کرزی وخت ناوخت دملي حاکمیت خبره کوي اویاپه امریکایانو یولږ نیوکې کوي معلومیږي چې په کومه میاشت کې هغه اودارګ خیټوروته دسې ای اې له لوري دډالروراشن لږ اوډیروخت ځنډیدلی .

که حقیقت داسې نه وي نو دسیاست په دنیاکې داخبره معمول اورواج دی چې هیڅ یودولت بل دولت ته اوبیاپه خاصه توګه استخباراتي شبکې چاته وړیااوبلاعوضه کمک نه ورکوي بلکې په سلګونه تخریبي شرایط اوغلیمانه دامونه ورته لاله وړاندې ږدي اوبیادجال صفته شبکې دپیسو ویالې پرې راپریږدي .

داوس اوس چې دافغانستان دګوشتې په پوله کوم تاوتریخوالی رامنځته شوي ، که څه هم دیوافغان په صفت دپاکستان لږ اوډیرغل په کلکوټکوکې غندم اوپه صراحت وایم چې دافغانستان په یوې لویشتې ځمکې هم څوک بلوسي ورنه دفاع یوه ملي فریضه بولم ؛ خواصلي خبره داده چې ددغه تاوتریخوالي اویرغل شاته ارومرودامریکا، برتانیا اوناټویوه پټه دسیسه هم موجوده اومتمرکزه ده ، ځکه هرچاته ښکاره خبره ده چې دګوشتې په پوله لدې وړاندې دامریکااوناټوقواوي پرتې وي اوچې کله له هغه ځایه دوی قواوې ویستلې نوددې پرځای چې افغاني لوري ته یې تخلیه اوسپارلي وای هغه یې پاکستاني لوري ته په اختیار کې ورکړل ؟!

پرځای هیله او تمه خوداوه چې د ناټو ددغه غلیمانه چلند له امله بایدافغانانود امریکایانوخلاف په ګوټ ګوټ کې پراخ لاریونونه اومظاهرې ترسره کړې وای اوله پاکستان څخه یې ډیرامریکاته دمحکومیت ګوته نیولې وی چې په کوم دلیل یې دافغانستان په کلومتروځمکه په مرموزډول دنوروپه اختیار کې ورکړه ، خوزمونږ ساده لوحواوسرسري څیړونکواوسیاستوالوهغه اصلي جنایت کاران اوعاملین چې امریکایان دي له یاده وویستل او دولس قهر او غوسه یې په بل لوري زیاته متمرکزه وګرځوله.

مونږ پرپاکستان هم غږ کووچې دپاک – افغان سرحدي مسایل ملي صبغه لري اودغه مهال په افغانستان کې کومه ملي اودولس استازې اداره وجودنلري ، نو پاکستان ته په کاردي چې په دغه حساسو شرایطو کې دافغانستان له ملي مسایلو سره دښه ګاونډیتوب اواسلامي اخوت پربنسټ محتاط دریځ غوره کړي اودافغان ولس له کمزوري حالت څخه ګټه پورته نکړي اوله بل لوري دنړیوال استکبارله اهدافوڅخه یوداهم دي چې دګاونډیانوترمنځ اړیکي خړې پړې کړي اوخپلو استعماري موخودرسیدولپاره مسلمان اوخواخوږي ملتونه یوله بل سره په خپل منځي شخړواولانجواخته اومصروف وساتي .

دموضوع خلاصه تورې دادي چې دکابل اجیرچارواکي اودټلوالې پاتې شوني دسې ای اې دپټواوښکاره ډالروپه مقابل کې له ایمان ، هیواداوانساني شرافت څخه تیراوآن ۱۳ کاله پخوایې ورسره خدای پاماني کړي ، مونږ کلک باورلروچې دګوشتې ربړه هم دسې ای اې دډالرو یومنصوبه بندي ده چې غواړي دافغان ولس سوچ اوفکر له هغې فتحې چې لوی اومتعال الله جل جلاله به یې سږ کال دخالدبن ولیددعملیاتوپه ترڅ کې پرافغانانولوروي په بل لوري واړوي اوضمناًدامریکایانوشتون ته یولږ دلایل په ګوته کړي اوڅوپوځي اډې دافغانانوپه ګټه وګڼي ؛ خوافغانان دتیرو ۱۳ کلونوپه اوږدوکې دامریکایي مداریانواوتالیځټو هرډول غاړې اوداموته په زوراوزیرولیدل اوله افغان ولس سره یې دامریکایانو پریمانه ! خواخوږیاني اوچلندهم وکوت ، نو فکرنکووچې لدې ورسته دې کرزی ، ټلواله اوامریکایان افغانان دوکه اوپه سرنوشت دې لوبې وکړای شي.

حامد ك - ل

# ګوانتانامو!

## دامريکايي منافقت ستر مثال... !!

دفروري په ٦مه (٢٠١٣ز کال) ګوانتانامو زندان کې امريکا ئې عملي په قفس ډوله خونوکې دبندو انسانانو تلاشي کوله ، هغوئ ددې لپاره چې بنديان ذهناً نا آرامه کړي دتلاشي پر مهال دعظيم الشان قرآن دسپکاوي ناوړه جسارت تکرار کړ ، چې په ليدويې ثوتنو بنديانو چې نورڅه نشواى کولى دامريکايي وحشتګروددې مردودعمل په غبرګون کې يې دنه خوړواعتصاب پيل کړ ،لږې ورځي پس څو نور بنديان هم ور سره دنه خوړو په اعتصاب کې ملګري شول ، بيا هم امريکايان ديته حاضرنشول چې دهغوئ غوښتنو ته يې غوږ نيولى وو او سرچپه يې اعتصاب کوونکو بنديانوته داذيتونواوتکليفونو ورکولوپه غرض هغوئ له نورو بنديانو څخه جلا واټ ته انتقال کړل ، چې دې کار دنورو بنديانو قهر اوغوسه راوپاروله ثوتنو نورو هم دنه خوړوپه اعتصاب لاس پورې کړ ،تردې پورې چې هلته دتېرو دوه مياشتو راهيسي داعتصاب کوونکو بنديان شمېرتر١٣٠ ورسيد. دخبري رسنيو له قوله په هغوئ کې د٣٠تنو حالت نهايتې نازك اوخراب دى ، دامريکا يې ډګرمن سيمويل په وينا :دوئ ٢٠تنواعتصاب کوونکو بنديانوته په زور دپوزو له لاري دنل يا پايپ په واسطه خواړه ورکوي او ۵تنه اعتصاب کوونکي بنديان په روغتون کې تردرملنې لاندي دي.



دګوانتانامو زندان په اړه نړيواله بې حسي اوناخبري حيرانوونکي ده ، ميډيا چې ټوله نړۍ يې دازادۍ ازادۍ نارو په سر اخستي ددغه شيطاني زندان په باب دحقايقو ويلو ډده کوي هم داراز نړيوالو بشري ټولنې اوملګرو ملتونو کردار هم دګوانتا نامو کرغېړن زندان په اړه صاف اوشفاف ندى ، چې ورته په کتو ددې دريځ پخلى کېږي چې حقيقت

کې دغه ټولي اداري دامریکائي ښکېلاک دګټو اوسیاستونومحور دي هیڅ ازادي اوخپلواکي نلري اوس چې سپینه ماڼۍ اعتراف کوي چې هلته ( ګوانتانا مو کې) دتیرو دوه میاشتو راهیسي دبندیانو لخوا دنه خوړواعتصاب دوام لري ، ولې دحقوق بشرپه نامه ټولني او دملګرو ملتونو نړیواله اداره دامریکا دغه شرمیدلی کړدار نه غندي او ولې ملګري ملتونه ګوانتانامو ته دبندیانو دحالت څېړلو په موخه دخپلو استازو ورلیږلو اړتیا نه محسوسوي ؟



تردې مهاله پوره نده څرګنده چې په ګوانتانامو کې بندیان دڅومره بدحالت سره مخ دي؟اودامریکایانو لخوااورسره څه ډول رویه کېږي ؟ ؟ امریکا د ټولو نړیوالو قوانینو څخه په سرغړونه ګوانتانامو کې شته بندیان له ټولو بشري حقوقو محروم کړي دي ،دغه وحشیانه اوتور زندان ته دامریکا یې دولت دبشر دښمنو ځارنوالانو اوساتونکو پرته بل هیڅوک لاس رسی نه نلري

دګوانتانامو دیوه بندي وکیل نتاراجن په وینا : په ګونتانامو کې بندیان دژوند اوبشریت له ټولو حقوقو محروم ساتل شوي دي ،هلته دبندیانوپه ګرځیدو ، خپل منځي ناستي ، خبرو او لوبو بندیزدی ،دبندیانو قفسي خونو ته هروخت قلفونه زوړند وي ، دوخت په تیریدو له ورانده شته قیوادت دنرمښت په ځای تشدیدمومي ، دبندیانو سره امریکایي ځارنوالانو اوساتونکو رویه له انسانیت اوبشریت بیرون ده او مسلسل انساني ارزښتونه ترپښو لاندې کوي

دډېرو په اند دګوانتانامو بندیان له خپل راتلونکې نهېلي شوي ،د ډېرو یوولسو کلو راهیسې هغوئ په سخت حالت کې ورځي شپې سبا کوي ، دپوښتنو اوګرویږنو په نوم هربندي زرګونه ځله دتحقیق له ستونزمنو مرحلو تیر شوی ،خو بیا هم دیوه بندي دوسیه بشپړه شوي نده ، دډګرمن مورس ډیوس په وینا هغه د ۲۵ کلو راهیسې دامریکا په هوائي ځواک کې وظیفه اجراء کوي ،دوه کاله یې دګوانتانامو خلیج کې هم تېر کړي دي ،هلته یې دګڼوبندیانو دتحقیق سحني لیدلي داسامه بن لادن دموټرچلونکې سلیم حمدان داسترلیایې ډیوډ هګ اودکاناډایې ځوان عمر قادرپرضد جوړې شوي دوسیې کتلي ، هغه ددې ټولو په پایله کې دیته رسیدلي چې له اوباما نه په یوه بریښنا یې لیک کې غوښتي :ګوانتانامو کې تراوسه د۱۶۰ څخه په زیاتو بندیا نو کې دیوه بندي دوسیه هم نده بشپړه شوي ، نه کوم بندي دکوم جرم له امله تورن ګرځول شوی ، ددې مطلب دادی چې زمونږ په نظام کې ضرور کومه داسې لویه خرابي شته چې له امله یې تراوسه مونږ ونکړای شول چې نیول شوي بندیان تورن ثابت کړو ،آخر ولې مونږ دهغوئ دتورنولو څخه ډډه کوو؟اوترلامحدود وخت پورې دهغوئ په بند کې ساتل غوره بولو ؟ دهغه په وینا که بل هرهېواد له بندیانو سره هغسې سلوک وکړي کوم چې په ګونتانامو کې زمونږ لخوا له بندیانو سره کېږي نو مونږ به هغه لوری پړ اوملامت وبولو ! هغه هېواد به دبشري حقوقو سرغړونکی وګڼو اوپه هغه به شدیدي

نیو کې وکړو ... دا دامریکایې منافقت ترټولولوی مثال دی ... مونږه څه ونکړل ...؟ ایا بیا هم مونږ داخلاقي برترۍ دعوه کولی شو ؟ که بل څوک له مونږ سره هغسې سلوک وکړي کوم چې مونږ په ګوانتانامو کې کووایامونږ به هغه ونه غندو ؟ نوتعجب ندی پکار که هرڅوک په مونږ (امریکایانو) لعنت وایې هغوئ حق په جانب دي ،نن نړۍ کې که هرڅوک زمونږ په سلوک اورویه نیو کې کوي اومونږ غندي وجه داده چې مونږ انسانې ارزښتونه پایمال کړي مونږ د بشریت کرامت ته سپک ګورو ....له شک پرته زمونږ اداري دانسانې حقوقو څخه سرغړوني کوي ... دارجینیا ایالت دغه ډګرمن له اوباما او ددفاع له وزیر چارلس هیګل غوښتي چې بشري حقوقو ته داحترام لپاره دي ګوانتاناموزندان وتړي اوترې غوښتي یې دي چې هغه دې په سپینه ما ڼۍ کې یوه کارپوه مامورته دنده ورکړي چې څو په دې لاره کې شته موانع لري کړي

اوباما چې کله د ولسمشرۍ کاندید په توګه دسیالۍ ډګرته راغی وعده یې کړې وه چې واک ته درسیدو سره به ګوانتانامو ضرور وتړي ، خودنورو وعدو په څېر هغه له خپلې دې وعدې په شا شو ، په وروستیو کې یې بیا و ویلې چې دګوانتاناموتړل پکاردي!

امریکایې کتونکي دهغه په نوي وینا دتبصرې ترڅ کې وایي : ګوانتا نامو کې شته بندیان هغه دې چې دبوش اومش( مشرف) په وخت کې نیول شوي ،داوباما دواک په وخت کې ګوانتاناموته بندیان ندی بیول شوي ، ټول دبوش دواک په وخت کې نیول شوي څوک چې اوس ندی وا کمن اوهغه ته زیاتره پرویز مشرف سپارل او په عوض کې یې ترې پریمانه ډالر اخستل ، زیاتره یې هغه عام مسلمانان دي چې د سیاحت په غرض پاکستان ته لاړول ، ځینې یې سوداګر دي ، افغانستان اوپاکستان کې دمخدره توکیو اخستو لپاره هغوئ تګ راتګ کا و و نیول شول او امریکاته وسپارل شول .

دکتونکو له قوله اوباما چې کله نه کله دګوانتانامو دتړلو خبره راپورته کوي لامل یې ددغه زندان قوي لګښتونه دي ، غواړي په تړلو سره یې هغه درانه لګښتونه سپما کړي هغه له ګوانتانامو نه بندیان دامریکا دننه محبسوته انتقالول غواړي، څنګ چې د امریکا ټول زندانونه د شخصي کمپنیو اوشرکتونوله لوري ساتل کېږي په ورته توګه ګوانتانامو زندان هم دیوه شرکت لخوا ساتل کېږي هغه شرکت ددغه زندان ددویم ځلي ترمیم اوبیارغوني لپاره تر دوه سوه ملیونه زیات ډالر غواړي داوباما په فکر داډېري پیسې دي پکاردي سپما شي او غوره بولي چې له ګوانتا نا مونه بندیان دامریکا دننه زندانو ته انتقال شي خو داچې دهغه ددې نظر سي ای اي اوپنټګان چندان ملاتړ نکړي نو په زغرده هغه هم دګوانتانامو زندان تړلو د حکم کولو څخه ډډه کوي ...





# دغوایي ۷او ۸

# اوروان یرغل !!



ـ عـــزم ـ

پنځه دیرش کاله وړاندې یاني د۱۳۵۷ کال دغوایي په ۷ نیټه خلقیانو او پرچمیانو دپخواني شوروي اتحاد په مرسته توره اوکرغیړنه پوځي کودتا وکړه ، چې په ترڅ کې یې دداود خان واکمني راوپرځوله اوپرځای یې دکمونیستي دولت اواوښتون اعلان وکړ .

روسانو اودهغو تالیځتو کمونیستانو غوښتل چې افغاني ټولنې په یوه سوسیالیستي جامعې واړوي ، دیني اوملي غرورېي وروځپي ،حریت او خپلواکی یې له منځه یوسي اوباالاخره افغانستان دنړۍ له سیاسي جغرافیې حذف اودشوروي استعمارګیډې ته یې واچوي ،هغوی ددغې پلیدې مفکورې اوناولې سوچ دتطبیق اوپلې کولو په موخه دجبر اووحشت ټول نیرنګونه اوحربې په کارواچولې ؛ خوافغان مسلمان ولس لدې پرته چې سمتی ، ژبنیو ، مذهبي اونژادي توپیرونو ته وګوري اود کور، کـالي ډوډی پوچوشعارونوته غوږ کیږدي په یومخیز اوسرتاسري پاڅون یې لاس پورې کړ او دخپلو علمای کرامو او بادرکه پوهانو په فتوا او امر یې د جهاد اومبارزي لار ونیوله اودهیواد په لوړو ژورو ، سمه اودښته کې یې دخپلواکی ګټلو انګازي خورې اوځلنده وګرځولې .

دثور دکرغیړنې کودتا اوبیا دسره کمون دیرغل په دوران کې زمونږ هیواداوولس اوږده اوویجاړونکي جګړه په سرواړوله ، یونیم میلون ککرې یې قربان کړې ، ٦ میلونو تنه هجرت ته اړشول ، سوونو زره معیوب ، تري تم اوپه سلهاووزره ګونډې او یتمیان شول ، دځرخي پله ، شش درک ، دریم ریاست ، صدارت ، پیلیګون اوپه ولایتونو اوولسوالیو کې دمنحوسو کمونیستانو ډول ډول شکنجې اوقتل عامونه یې تحمل اوولیدل ، خوله خپلې اسلامي داعیی څخه یوه لویشت هم پرشاه نشول ، هماغه وو چې مقتدررب ( جل جلاله ) دافغانانو د سترجهاداوپاڅون په نتیجه کې نه یواځې دثور کودتاچیان د۱۳۷۱کال دثورپه ۸ نیټه مخ تورې اونسکوروګرځول ، ورسره یې دجدې دشپږمې یرغلګر ( شوروې لښکرې ) هم لاله وړاندې تارومار اودافغانانو دقهراوغضب په طوفان کې ډوبې کړې وو.

نوویلای شو چې دافغانانو دکړاو ، دربدری ، ورانی ، مرګونو او راز راز ناورینونو ، پیل دغوایي داوومې کودتا څخه پیل اوتراوسه پورې چې افغانان په څومره تراژیدیو اوستونزوکې ګیراولاس ګریوان دي دثور کوتاچیان اوهغه څوک چې بیایې ترخپلې لمنې لاندې هغوی پټ کړل اویوځل بیایې دواک ګدی ته ورسول مخامخ دخیل اوشریک دي .

دافغانانو له دومره لویي قربانی اومشقتونو ګاللوورسته کلکې هیلې اوامیدونه داوه چې کله کمونیستي اداره سقوط کوي اومجاهدین بریالي کیږي نوپه کابل اوټول هیوادکې به داسلامي نظام زرینې

وړانګې خپرېږي ، مقدس اسلامي شریعت به نافذیږي اودهیوادپه کنډرکنډرېدن به دبیارغونې اوترقی ملهم ونه ایښودل کیږي .

خود۱۳۷۱ لمریز کال دثورپه ۸ نیټه چې کله ددغو هیلو دپوره کیدلو شیبې راورسیدې ، کمونیستې اداره نسکوره اومجاهدین کامیاب شول ،یوشمیر هغو قوتونو چې ځانونو تــه یــې دمجاهــدینو نسبتونه کــول اودجهاددوراثــت دعــوه یــې لرلــه دخپلــو بــادارانو اومړو کمونیستې بانډونو پـه شیطانت دافغانـانو دغـه مبینـه فتحـه تالاترغـه ، دقـدرت کشـمکش یـې پیـل اودکورنی جګړې اوریې بل کړ .

دقـــدرت اوخودخـــواهی همـــدغو مجاهـــدنماڅیرو اودیونیم میلون شهیدانو لـه پـاکو ارمانونو سره معامله ګرو مجریمینو په دې هم بسوالی ونکړ ، بلکې نور یې هم دافغـان ولـس دښـمنی تـه لاس وراوږدکـړ اوداوار یـې دافغانستان حریت اوحرمت دچوکی اومادیاتو په بدل کې په امریکا، ناټو اوغرب وپلوره ، دهغو لښکرو تـه یـې داشغال بلنه ورکړه اودافغان ولس دنورې بربادی ، وژلو اوکړولو په خاطرورسره اوږه پراوږه ودریدل !!

اوس کـه څـه هـم دغـه څیـرې دبـدنامی اورسوایي اخیـرې مرحلـې تـه رسیدلې ، هغـه پـه دې مانـاچې هـم دافغـــان مجاهـــد ولـــس لـــه لـــورې دنفـــرت اوکرکـــې وړ ګرځیدلې اوهم دامریکا، ناټو اوغربي بادارانو له لوري استفراق شوي او په یوه سربداله اولالهانده سرنوشت کې راګیردي ؛ خودوی بایدپوه شي چې دافغان مظلوم ولس لـه اه اوازارڅخـه بـه هیچـرې هـم خـلاص اونجـات پیدانکړې ، دوی بـه ارومرو اویویودملت محـاکمې تـه وړاندې کیږي اودخپلو جنایتونو اوخیانتونو ځواب به وایي ؟

ددې ترڅنګ امریکااوناټودې هـم پـه یـادولري چې سرې لښکرې له دوي نه په ځواک ، شمیره اوروحیه کې ډیـربرابره قـوي او غښـتلې وي ، هغـوی چـې دایمـان اوعقیدې سپاهیانو تـه تـاب رانـه ووړ اودافغانانو لـه شل کلـن جهـاد اومبـارزې ورسـته الله تعـالی نیسـت اونـابودوګرځول،دوی خـو لـه روسـانو ډیرکمـزوري ، کاواکه او بیم زده دي ؛ ښه بـه داوي چـې پـه افغانستان کې دپخواني شوروي اتحاد له تـاریخي مـاتې اورسوایي څخـه پـوره عبـرت واخلـی اوسرله نـن څخـه دتیښـتې اوپښو سپکولو داسې تیاری اوچمتوالی وښیي چې پـه افغانستان کـې دېـوې ځـالې اوعسکردپاته کیـداچکر اوسـوچ هـم نـه وي ورسـره ، ځکـه افغانانوتـه لـږ اوډیرعسـکر ټـول یـوه اډه اوټـول اشـغال پـه یـوې معنـااوتعبیر دي اودبشپړ اشغال اویرغـل پـه سترګه ورته ګوري .

مـــونږ بـــاورلرو چـــې دتیر کـــال دالفـــاروق عملیاتودامریکا، ناټو اوګوډاګي رژیم مـلا ماتـه کـړې او عملاً یې دتیښتې پـه مورګـه درولي ، داچې دمجاهدینو دسږ کـال عملیـات خالـدبن ولیـدټاکل شـوي ، لـه لـوی اوتوانـاالله تعـالی څخـه امیـدلرو چـې دغـه عملیـات بـه داسلام دلـوی سپـه سالاراوسترفاتح حضـرت خالـدبن ولیدرضی الله تعالی عنه ،د نوم ، عظمـت اودهغـه دالهي تـورې پـه برکـت افغانانوتـه دورستی فتحـې زیـری اوبشـارت راوړي اوداشـیبې ډیـرې لنـډې اونیـږدې بریښي ( انشاالله تعالی )




# در خدمت یا خیانت ملی؟!

تا به حال ایالات متحده امریکا، بریتانیا، فرانسه، آلمان، هالند، دانمارک و سایر کشورها، همچنین ادارات مختلف سازمان ملل از جمله یونسکو میلیون ها دالر برای سرپا نگهداشتن و بقای رسانه ها در افغانستان صرف کرده اند.

نوح میلر مدیر مالی موسسه اینترنیوز افغانستان یکی ازNGOهای رسانه ای که در امریکا مستقر است، تحقیقی را در مورد پیشرفت رسانه ها در افغانستان انجام داد. در گزارش میلر به استناد بانک اطلاعاتی مرجع هماهنگی کمک های مالی به افغانستان آمده است که ۳۱ پروژه با بودجه ۸/۵۶ میلیون دالر به زیرساخت های رسانه ای اختصاص یافته است اما جوامع بین المللی ۸/۲۹ میلیون دالر تعهد کرده اند واز این مبلغ فقط ۷/۴ میلیون دالر به حساب ریخته شده و مسئولان، حق برداشت داشته اند.

علاوه بر این، گزارش میلر نشان می دهد که از این مقدار پولی که به حساب ریخته شده ۲۲/۲ میلیون دالر فقط صرف برنامه های تبلیغاتی و دروغ پراکنی شده است. از زمان گزارش میلر مدتی می گذرد و ممکن است در این فاصله کمک های بیشتری به حساب ریخته شده باشد. موسسه اینترنیوز به کمک یک اداره آمریکایی ۱۴ ایستگاه رادیویی در افغانستان راه اندازی کرده است.

حمایت هایی نیز از طرف آلمان ها برای انجام و نشر فعالیت های رسانه ای نیز صورت گرفته است. مردم ما شاهد هستند که یک بار قوایی آمریکا ۲۰۰ هزار رادیوی ترانزیستوری رایگان در اختیار افغان ها قرار دادند که این خود نشان می دهد تا چه حد اشغالگران به تبلیغات و پروپاگندای جنگی باورمند و متعهد هستند.

اما با همه، اینها باز هم تعداد انگشت شماری از رسانه ها و ادارات نشراتی که واقعا مستقل بوده و در تلاش مراعات و اصول رسانه ای و نشراتی هستند در نتیجه، تهدیدها و مزاحمت های مقامات امنیتی و دولتی قرار گرفته و مجبور به سانسور و نشر مطالب و موضوعات مورد پسند رژیم و مقامات دولتی میشوند.

خبرنگاران بدون مرز می گویند یکی از مهمترین مشکلات بر سر راه رسانه های مستقل و بی طرف در افغانستان سوءاستفاده مقامات امنیتی، حکومتی و نیرهای خارجی از رسانه ها برای رسیدن به اهداف سیاسی بوده است.

خبرنگاران بدون مرز شواهد و مدارک بسیار متعدد در اختیار دارد که فرقه ها و گروه های مختلف در افغانستان به تهدید، ارعاب، قتل و سرکوب خبرنگاران پرداخته اند.

مدیران و گردانندگان رسانه ها می گویند که تبلیغ نقشی عمده در این جنگ دارد و نشر انتقادات نسبت به دولت در رسانه ها باعث شده است تا مقامات امنیتی برخی سانسورها را اعمال کنند. در ماه جنوری مدیران رسانه های عمده برای دریافت لیست ۲۴ مورد ممنوعه در اطلاع رسانی احضار شدند. این سند که از

جمله داشتن رابطه با طالبان، انتشار اخبار مغایر با سیاست داخلی و خارجی کشور و یا نیروهای اشغالگر خارجی را ممنوع می کرد.

رژیم کابل با استفاده از ارگان امنیت ملی سران رسانه های داخلی را وادار کرد تا در نحوهء گزارش دهی خود در مورد اوضاع سیاسی و امنیتی کشور منافع رژیم و حامیان خارجی انها را مد نظر بگیرند.

ریاست امنیت ملی برای رسانه ها یک هدایت نامه دو صفحه ای تسلیم داد، تا مطابق به آن عمل نمایند. در این هدایت نامه نکات آتی جلب توجه می کند:

- از پخش عکس سران شورشی و تروریست (طالبان و مجاهدین) و مصاحبه با آن ها خود داری صورت بگیرد.
- از انتقاد نیرو های ائتلاف وآیساف (امریکا و ناتو) خود داری شود.
- از اردوی ملی انتقاد نشود.
- (سران احزاب قبلی و وکیلان شورا) به نام جنگسالار خوانده نشوند.
- نشرات مخالف سیاست خارجی افغانستان نباشد.
- از نشر مطالب مبالغه آمیز و گمراه کن که باعث هتک حرمت مقامات دولتی، به خصوص افراد عمده می گردد، خود داری شود.

مقامات امنیتی به روزنامه نگاران دستور داده بودند که از بکار گیری اصطلاح جنگ سالار خودداری کنند اما در عوض از تلاش های اردوی افغانستان حمایت کنند. علیرغم سرو صدایی که این سند به راه انداخت اما حامد کرزی تائید کرد که از سوی تهیه کنندگان این سند مورد مشورت قرار گرفته است، چرا که به نظر وی برای رژیم وی و به اصطلاح امنیت ملی کشور باید مواردی را به حساب آورد. اما بادریغ ودرد ، که تمامی این نشریه ها باوابستگی های معین، باطرزتفکرخاص، باحقارت و وعقده مندی های بیمارگونه وباحمایت افراد معلوم الحال درپی خیانت ، تخریب، تحقیر و توهین ملت Â کمربسته اند. این نشریه ها هرآنچه که وجدان بیمارو ناپخته شان اجازه میدهد در مقابل دید خوانندگان قرارمی دهند. این نشریه ها باگذشت هرروزدرین مسیرخیانت به ملت بیشترازگذشته وتندترازقبل مصروف اند. برای اثبات مطالب فوق الذکر لازم میدانم تا همانند ضرب المثل مشت نمونه، خروار یک مثال را برای نمونه های حوادث و واقعات دوازده سال اشغال و جنایت اشغالگران و خیانت رسانه در مقابل آن را درذیل بیان دارم، اگر واقعا رسانه ها و منابع نشراتی مستقل، بی طرف و وابسته نباشند، پس چگونه ممکن است که یک قریه و تمام باشندگان ان برای دو روز متوالی در محاصره کامل باشند و رسانه ها ازآن بی اطلاع باشند؟

چگونه ممکن است که بیش از ۴۸ تن بشمول ۱۱تن از اطفال و زنان به شکل وحشیانه ای به شهادت برسند و رسانه ها ازان بی اطلاع باشند؟ چگونه ممکن است که بمباردمان هدفمند و ویرانی منازل مسکونی و خانه های مردم ملکی جریان داشته باشد و رسانه ها ازان بی اطلاع باشند؟ واقعه، دردناکی که در قریه، سجاوند ولسوالی برکی برک ولایت لوگر که دو روز متوالی در محاصره، اشغالگران خارجی و عوامل مزدور داخلی انها بوده و بیشتر از ۴۸ تن از زنان ، اطفال و پیرمردان به شکل فجیعی به شهادت رسیده اند. این کشتار و بمباردمان هدفمند خانه ها و منازل مسکونی از یک سو بر قساوت و جنایت ضد بشریت اشغالگران و از طرف دیگر بر خیانت نابخشودنی در نتیجه، سکوت مطبوعات و رسانه ها صحه می گذارد. (افغان تلکس)




# د (عزيز التفاسير) دمفسر او محدث شيخ سلطان عزيز (عزيز) رح دژوندا و آند ثو شيبې!

مفتي شاهد ' حقاني '

رښتيا هم چې دصالحوعلماوو او اولياوو ژوند دټول انسانيت لپاره دسعادت او نيكمرغۍ لامل وي ،كله چې دداسې روحاني او علمي ستو دابديت پر لور كوچېدل پيل شي او ددنياله ژوندانه سره وداع وكړي، نو دفتنو ،مصائبو اوفساداتو لړۍ لكه ديوه ځنځير په څېر يو په بل پسې پيل شي ، كله چې دداسې غير مترقبه پيښولړۍ تنده شي نوڅرګنده ده، هغه سپيڅلي ارواوې بيا دبلې دنيا ميلمانه شوي وي،ددنيا په كدورت كې اخته خلك نور هم دضلالت په ځوړوسر شي او دبزرګانو په كراماتو دبندو شويو فتنو دروازه ماته شي.

يوه حديث شريف كې داسې راغلي چې : عن مرداس الأسلمي عن النبي ـ قال: « يذهب الصالحون الأول فالأول ، ويبقى حفالة (1) مثل حفالة الشعير أو التمر لا يبالهم الله بالا » الاداب للبيهقى /ج/١ص ٣٠۴)

قوله: حفالة يعني: رذالة ، كرديء التمر ونفايته

(1) الحفالة : الحثالة وهي الرديء من كل شيء والمعنى : من لا خير فيه من الناس )يعني نيكان خلك به يو په بل پسې له دنيا نه رخصتېږي اودنيا كې به داوربشو او خرماوو د ردي او بې كاره پاتې شونو په څېرداسې انسانان پاتې كېږي (خير به پكې نوي )چې الله ج به يې پروا نكوي اونه به پرې خيال راوړي.

په يو بل حديث شريف كې راغلې چې: عن عبد الله بن عمرو ، عن النبي عليه السلام قال: « إن الله لا يقبض العلم بأن ينتزعه انتزاعا ، ولكن يقبضه بقبض العلماء حتى إذا لم يبق عالما اتخذ الناس رءوسا جهالا سئلوا فأفتوا بغير علم فضلوا وأضلوا »مشكل الاثار للطحاوى ج ١/ص٣١٩/ يعني يقينا الله جل جلاله دا علم پداسې ډول نه قبض كوي چې دبندګانو له سېنو نه يې وباسي ،بلكې دعلم قبض كول به، پداسې طريقې سره وي ،چې الله جل جلا له به علماء قبض كړي (وفات به يې كړي ) ، تردې پورې چې يو عالم به پاتې نشي ،چې بيا به خلك جاهلان او بې علمه كسان مشران كړي، ددوئ نه به پوښتنه كيږي، نو دوئ به بې له علم او پوهې نه فتوى وركوي ،نو پخپله به هم ناپوه او ګمراه وي اونور خلك به هم بې لارې او ګمراه كړي.يعني صحيح علم او عمل دانسانيت دنجات لاره ده او تر څو چې دادواړه وي ،خلك به دټولو فتنو ،فسق اوفجورنه مصئون وي ،چې ددې كار دواړه توكي دعلماوو ،اولياوو او صالحانو په وجود كې شونې دي.

شيخ القرآن والحديث مولينا سلطان عزيزرح دهيواد دهغو جيدو علماوو په ګټګورۍ كې و ،چې دكمونستي كودتاه نه راواخله ،تر امريكايي يرغله پورې يې دجهاد اوهجرت ماضي له منحرفو سياستونو ،داخلي خونريزيو اوله اسلامي او ملي خيانتونوله داغونونه پاكه اودخپل دين ، وطن اومسلمان

ولس دمسؤلیتونو په وړاندې یې دهغو جفاکارانو ملاتړ ندی کړي ،چې هم خدای ج او هم ولس ته مختوري دي ،دده ژوند دتقوی ،دیانت ،تدریس ،تصنیف او جهاد هغه مخمس یا غورچاڼ دی، چې نه یوازې خپل وارثان بلکې ټول ولسونه به پرې وویاړي.

که د(عزیز التفاسیر) دامفسر اوددې عصر په نبض پوهیدونکی عالم په ۱۳۵۷ه ش کال کې دکمونستانو د کودتاچیانو پر خلاف دمشروع پاڅون یو بارزعلمبردار اودجهادي خاطرو یو مجسم انځور و ،نو په ۱۳۸۱هش کال کې یې بیا دبلې یرغلګرې امپراتورۍ ٠امریکا او ناټو )پر خلاف دخپل ولس دسرترتاسري پاڅون دهغه تاریخي فتوی علمبردار دی ،چې داسلامي امارت دمجاهدینو لیکې یې، دامریکایانو په وړاندې دخپل ولس په بیدارولو پیاوړې کړې ،چې له برکته یې نن دادی ،ددې نړۍ خورې امپراتورۍ دزوال پیلامه شروع شوي او داسلامي امارت دمجاهدینو دفتحې کاروان دکابل دارګ پر لور دپرمختګ جرس وهي.

خو له بده مرغه چې زمونږ افغاني ټولنه چې له یوې خوا دعلم اوادب نه فقیره ده ،خو چې بیا کله پکې کومه داسې ستـه وروزل شي ،چې هغه دعلم ،سیاست ،ادب ،جهادي میړانې یااجتماعیت غوندې ډګرونوکې تر نور وښه وځلیږي ،دشخصیت خاوندشي اودبخت ستوري یې د آسمان په افق کې راوخیژي ،نوموږ یې په ژوندکې ونشو نمانځلی اونه یې پرخدماتو نمانځغونډې جوړو ، بلکې ځینو خلکوته خو دده استعداداوکاري وړتیا دتحمل او زغم وړ نوي ،کله چې یې بل څوک هسې دعلمي بصیرت اوتفوق کومه کرشمه یاده کړي ،نو دستاینې پر ځای یې وغندي اوخپله حاسده سینه پرې یخه کړي ،خو چې کله داعلمي ،ادبي یا جهادي ستـه چې دنبوغ یا دشهکاریو ځلي یې ځلیدل ،دخپل ابد پرلور لاړه شي اودژوند ډیوه یې مړه شي، نو خلک یې بیا په یاد نمانځغونډې هم جوړوي اونه شتون یې یوه تشه احساسوي ،بیا پوه شي چې رښتیا په ژوندیې ددې اجتماعي او علمي ستې یا ټولمنلې څېرې ستاینه نده کړې او دده په حق کې یې کوتاهي کړې ،هغه نشتر هم بیا مات کړي ،چې ددې ټولمنلې شخصیت نبوغ اوپرمختګ به یې پرې ژوبلاوه، او هغه ته به یې پرې ستونزې ایجادولې، خو بیا هیڅ ګټه ورته نه رسوي اویوازې ندامت اوافسوس وي اوبس.

خو زمونږ دعلماووټولنه بیا الحمدلله ترډېره بریده دداسې سلبیاتواو منفي تمایلاتونه ساتل شوي ،اوکه کومه داسې ستونزه پیداهم شي ،په قرآن او سنت یې هواروي ،اودې حدته نه پریښودل کیږي، چې غندنې اوټکونې پکې ځای ونیسي ،دوئ علماء چې دانبیااوو وراثت کوي ،پدې به وارزي چې دمدحواوستاینو په مېنارونویې وځلواودرسالت او نبوت ص دپیغام رسونکې په ښه یې خلکوته وستایو کړو !

پورتنیو جملو کې مې دخپلې افغاني ټولنې هغه ناخوالې او تشې په ګوته کړې ،چې قابل اصلاح دي خو هیڅوک یې داصلاح کوشش نکوي او لاهم دا خلا ډېره زیامنونکې پاتې ده.

رښتیا هم چې دځمکې پر مخ عالم اوددین دپیغام رسونکی دلوی څښتن ج درسولانو علیهم السلام استازولي کوي اوددوئ شتون که یوه رڼا او دترورمیوپه منځ کې څراغ دی ،نونه موجودیت یې بیاهغه زیانمنوکې صبغه ده، چې تلافي یې نا شونې وي ،همدوئ انسانیت ته لارښوونې کوي ،دالله ج له خالقیت اودموجوداتوله مخلوقیته یې خبروي ،همدوئ خلکوته دمنبر، محراب ،کتاب اوقلم له لارې دجنت نعمتونه او ددوزخ سره اورونه تمثیلوي او انسانیت ته داسې هدایات کوي ،چې ددوئ ګانده یا راتلونکې پرې روښه شي.

شیخ التفسیرمولوي سلطان عزیز(عزیز) رح هغه څوک دی، چې پنځه وارې دبیت الله حج او دوه کرته یې عمره اداکړې ،رښتیا هم چې داډول سعادت به دګوتوپه

شمېر خلکو په برخه شوي وي، چې د الله ج په حرم دې دومره اووه ځله مشرف شوي وي.

د(عزيزالتفاسير) دا مفسر د تېر د جهاد داووګونو جهادي مشرانو سره په کعبه شريفه کې هاغه لحظه هم موجود و، چې هغوئ په ګډه بيت الله کې قسم وخوړ، چې بې اتفاقي به نکوي او په ګډه به د روسانو په خلاف افغانستان کې جهاد کوي، خو په دومره تفاوت چې مولوي سلطان عزيز مرحوم خپل عهد ته وفادار پاتې شو او تر پايه يې بيا کوم تنظيم کې دنده تر سره نکړه، او د خپلو تنظيمي مشرانو په عهد شکنۍ او د کعبې پر حلف ماتولو يې د دوئ څخه تر پايه بې طرفي خپله کړه، تر دې چې د برهان الدين رباني د خونړي واک په وخت کې د يوه جهادي تنظيم مشر د مرحوم شيخ صيب نوم د جمهوري رياست لپاره هم وړاندې کړ، مګر ده ورسره مخالفت وښود او د ارګ پاچهي يې ونه منله، دا نو هغه نذرانه ده چې هيڅوک به يې ونه کړي او نه به څوک دومره ايثار ته چمتو شي.

کله چې د اسلامي امارت د واک په کلونو کې امريکا پر امارتي مسؤلينو د(شهيد اسامه بن لادن) د موجوديت له امله فشار راوړ، او اسلامي امارت په نره د حالاتو مقابله کوله، خو له هيواده بهر د امارت سياستونه په معکوس او اوښتلې شکل تصويريدل، نو محترم شيخ سلطان عزيز رح يو پنډ منصوصي حوالې په کاغذونو ليکلې او پيښورکې يې د امارت جنرال قونسلر مولوي نجيب الله صيب ته ورکړي او د هيواد ديو عالم په حيث يې د امارت دې استازي ته له خپلې خوا ډاډ ورکړ، چې ده نه يوازې د خپل ځان لخوا، بلکې د امت د علماء له لورې هم د امارت مقاماتو ته د دې سياست د ډاډ روحيه ورکړه، په صفاټکو کې يې ورته وليکل چې دده ساتنه يوه ديني وجيبه ده او امارت اسلامي بايد د دې مجاهد په تنګه کې نوره هم حوصله غښتلې کړي.

د اسلامي امارت په مشرۍ د لويديځ په خلاف د روان جهاد تر شا د نورو علماوو غوندې نوموړی مجاهد عالم له لومړۍ ورځې نه کلک ملاتړ کاوه او د فدايي بريدونو په تاييد به يې څرګندوني کولې، نوموړي به ويل چې زمونږ جهاد له پيله تر پايه ټول فدايي دی، نو د فدايي بريدونو د نه جواز سوال نه پيدا کيږي او نه يې بايد څوک په باب شک وکړي.

**پيدا ښت** :

شيخ مولوي سلطان عزيز (عزيز)، د افغانستان د ننګرهار ولايت د غني خيلو د ولسوالۍ د ګلايي د مجاهد آباد د کلي او سيدونکی و.

نوموړی په ۱۳۱۵ هـ ش کال زيږيدلی دی، د طفوليت له دورې نه وروسته يې تر ۱۳۳۱ هـ ش کال پورې په خپل کور کې څه ابتدائي زده کړه وکړه، بيا يې تر ۱۳۳۲ هـ ش کال پورې د افغانستان په مختلفو څنډو کې لکه لغمان، تګاب، لوګر، شمالي او د کابل ښار په شاوخوا کې شپږ کاله خپلې زده کړې ته ادامه ورکړه.

په ۱۳۳۲ هـ ش کال د ننګرهار ولايت د نجم المدارس د مدرسې په اووم ټولګي کې شامل شو، بيا يې د نهم ټولګي لپاره د لياقت امتحان ورکړ، په دې توګه يې په يوه کال کې دوه ټولګي ولوستل، پنځه کاله وروسته يې په ۱۳۴۱ هـ ش کال د همدې مدرسې د دوولسم ټولګي څخه په اعلی درجه فارغ شو.

**د مدرس او معلم په صفت** : د فراغت څخه وروسته په همدغه کال (۱۳۴۱ هـ ش) په نوموړې مدرسه کې د استاذ په حيث مقرر شو چې تر ۱۳۵۵ هـ ش کال پورې يې څوارلس کاله په دغې مدرسه کې د تدريس دنده ترسره کړه او د تدريس په جريان کې يې په ۱۳۴۳ هـ ش کال قران کريم حفظ کړ.

دا چې شيخ صاحب د اسلامي او جهادي خوځښت د بنياد ګذارانو څخه و او په نوموړې مدرسه کې يې د ځوانانو په اسلامي فکر روزنه هر چا ته په ډاګه وه، همغه و چې د وخت د نظام لخوا په ۱۳۵۲ هـ ش کال د تخارستان ديني مدرسې ته تبديل کړی شو، چې تقريبا دوه کاله په دغې مدرسه کې استاذ وه.

په ۱۳۵۷ هـ ش کال د پکتيا-ګرديز ولايت روحاني دار العلوم ته تبديل کړای شو، خو بالآخره د همدغه کال د حوت د

مياشتي په وروستۍ شپه پاکستان ته په هجرت کولو کامياب شو.

د يو کال لپاره يې د پاکستان د پېښور ښار د مالګې منډۍ په ديني مدرسه کې د استاذۍ وظيفه ترسره کړه او د احاديثو او فقهي کتابونه يې تدريس کړل.

د تفسير ليکنې ترڅنګ، شيخ صاحب د احاديثو په تدريس هم بوخت و، او تقريبا د هجرت له لومړيو کلونو راهيسې به د خپل هر يوه استوګنځي په مربوط جوماتونو کې د الله په مرسته د قران کريم د ترجمې او تفسير په تدريس باندې مشغول و.

## د جهادي تنظيمونو داتحاد دداعي په حيث

: کله چې د جهادي قوت د يووالي خبرې پيل شوې، شيخ صاحب ورته تدريس پرېښود او په دغه اهم کار کې يې ګډون وکړ، نو د الله ج په فضل جهادي قوتونه سره متحد شول، او (د افغانستان د مجاهدينو اسلامي اتحاد ) تر نامه لاندې سره راټول شول او شپيته کسيزه شورا جوړه شوه، په دغې شورا کې شيخ صاحب د يوه غړي په توګه شامل شو.

تر يوه وخته يې د يادې شورا د منشي (عبوري دار التحرير د رئيس) په توګه وظيفه اجراء کړه، بيا د اجرائيه شورا غړی شو، چې سمد ستي د پلان د کميټې د رئيس په صفت وټاکل شو، او بيا څه وخت وروسته د دعوت او تنظيم د کميټې رئيس مقرر کړې شو

کله چې اتحاد منحل شو او هرڅوک خپل پخواني تنظيم ته ورستون شو، شيخ صاحب چې (د مولوي خالص د اسلامي حزب غړی و ) بيرته خپل تنظيم ته ورستون نه شو، دليل يې دا وه چې:

الف: اتحاد شرعاً متحقق شوی دی ،چې ټولو مشرانو استعفاګانې کړي او خپل خپل تنظيمونه يې منحل اعلان کړي دي.

ب: دغه بيا فعال شوي تنظيمونه په زړو نومونو په نوي بڼه جوړشوي ، او پخواني تنظيمونه له منځه تللي.

ج: بايد ټول مجاهدين په خپل عهد ودرېږي او مړه شوي تنظيمونه بيرته راژوندي نه کړي.

په ډير تاسف چې د شورى د شپيتو غړو څخه يوازې شيخ صاحب مرحوم خپل هغه عهد ته وفادار پاتې شو ،کوم يې چې د کعبې په داخل کې له الله سره کړی و، او نورو ټولو په سوګند سره تائيد شوي عهدونه مات کړل. شيخ صاحب ټولو نويو جوړو شويو تنظيمونو ته چې فقط نومونه يې زاړه وه، شا کړه او د يوه فرد په حيث يې د کمونستانو سره په جهاد کې په عملي توګه لويه ونډه واخسته او هم يې د کونډو ، يتيمانو او د جهاد د زخميانو سره خدمتونو ته اوږه ورکړه اوبس.

کله چې د روسانو سره جهاد پای ته ورسيد او د ځينو کړيو په لمسون د مجاهدينو ترمنځ جنګونه پيل شول، شيخ صاحب په خپل پخواني دريځ پاتې شو او له يوې ډلې سره هم ملګری نه شو، خود بې اتفاقۍ د له منځه وړلو او د اصلاح لپاره يې ډيرې هلې ځلې بيا هم وکړي او ترخپلې وسې پورې يې کوښښونه وکړل.

## دامريکايانو ديرغل پر خلاف دجهاد فتوى :

کله چې په ۲۰۰۱م کال په افغانستان باندې د امريکا په مشرۍ نظامي يرغل وشو، شيخ صاحب يو له هغو علماوو څخه و، چې د يرغلګرو او د هغوئ د لاسپوڅو پر ضد يې د جهاد د فرضيت فتوی ورکړه، او نه يوازې دا چې مسلمانان يې د دوئ په مقابل کې د دغه اهم فرض اداء کولو ته وهڅول ،بلکې پخپله هم د دين د لوړ ساتلو لپاره هر ډول قربانۍ ته چمتو شو.

**بيلګه نذرانه** : دجهاد او مجاهدې په لړکې يې د کورنۍ دري غړي د صليبي اشغالګرو سره په جګړه کې شهيدان شول ،چې نومونه يې دا دي: حذيفه عزيز (۲۱ کلن، د مولوي صاحب کشر زوی او د اسلام اباد په نړيوال

اسلامي پوهنتون کې محصل ). صهيب شاکر (۲۰ کلن، چې د مولوي صاحب لمسی و ). نور الهدی (۲۲ کلن، وراره).

**قلمي جهاد او د اسلامي امارت دخواخوږي په صفت :**

د دې تر څنګ یې خپل قلم هم د کفارو پر ضد تاند وساته او وخت په وخت به یې د خلکو اذهان روښانه کول.

هغه وخت چې لا امریکایانو په افغانستان یرغل نه و کړی خو ګوابښونو یې نړۍ په سر اخستې وه او د افغانستان له مسلمان ولس څخه یې خپلې ډول ډول غوښتنې درلودې، شیخ صاحب د مسلمانانو د عزم د ټینګښت لپاره هلې ځلې کولې او اسلامي امارت ته یې د قران او سنتو په رڼا کې اهمې مشورې ورکولې، د بیلګې په توګه: هغه وخت چې امریکایانو له طالبانو نه اسامه بن لادن تسلیمیدل غوښتل او موضوع ډیره ګرمه وه، شیخ صاحب د قران او سنت په رڼا کې د همدې موضوع په اړه څو صفحې ولیکلې او په پیښور کې یې د افغانستان کونسلر (مولوي نجیب الله) له لارې مشر ملا صاحب ته ولیږلې ،ترڅو د ده خپل دیني مسئولیت اداء شي او د هغه عزم لا ټینګ شي.

شیخ صاحب په خپل تفسیر (عزیز التفاسیر) کې هم د وخت حالاتو ته په پام سره د طالبانو په مشرتابه اسلامي حکومت ته ځای په ځای مشورې ورکړي (**۵** جلد ، **۵۴۹** صفحه او نور)

همدارنګه یې د (النور ) سورت تر ( **۵۵** ) ایت لاندې د افغانستان اسلامي امارت د الله د وعدې مصداق ګڼلی دی. (جلد **۸** صفحه **۵۲۹** ).

**تفصیل :**

عزیز التفاسیر: جلد **۵** صفحه: **۵۴۹** :

د آیت شریف تازه مصداق:

څرنګه چې قرآن کریم د ټولو مسلمانانو لارښوونکی کتاب دی نو د قیامت د ورځې پورې داسې حوادث نه موندل کیږي چې په قرآن کې یې د وجوهو څخه په یوه وجه جواب موجود نه وي. د همدې کبله دا کتاب په آخر الزمان پیغمبر صلی الله علیه وسلم باندې نازل شوی دی چې د الله عز وجل د پلوه نه بل کتاب نازلیږي او نه بل پیغمبر را استولی کیږي.

همدا اوس په دنیا کې ډیر تود بحث روان دی او غربي دنیا د طالبانو د حکومت څخه غواړي چې په خپل دریځ کې په څه نرمښت باندې قایل شي. د بي بي سي (BBC ) رادیو څخه مو واوریدل چې بین الملل د طالبانو د حکومت څخه تکرارًا وغوښتل چې:

الف : مختلط حکومت جوړ کړئ او پخوانیو کمونستانو ته په برخه باندې قایل شئ.

ب : زنانه وو ته ازادي ورکړئ چې په بازارونو کې لوڅ مخونه وګرځي راوګرځي.

ج : او هم اجازه ورکړئ چې په رسمي دفترونو کې د نارینه وو سره بې پردې کاروبار وکړي.

د : او هم دا ومنئ چې زنانه په مکاتبو کې مخلوطه (ګډه وډه ) زده کړه وکړي.

هـ : د غله لاس مه پریکوئ او د حدودو په اجراء باندې غټه ډیره کیږدئ.

ای اسلامي حکومته ! که تاسو دغه او دغسې نور هغه کارونه ونه کړئ چې مونږ یې درته په ګوته کوو ، مونږ تاسو ته د یوه مستقل حکومت په صفت نه شو قائل کیدلی، په اصطلاح تاسو به په رسمیت ونه پیژنو.

نو د ذکرو شوو غوښتنو معنی دا ده چې د هغو ایتونو او هغو احادیثو څخه صرف نظر وکړئ کوم چې د زنانه وو په حجاب او د حدودو په هکله نازل شوي دي او یا روایت شوي دي، او په عوض کې یې د غربي دولتونو قوانینو ته ځای ورکړئ.

مونږ د الله عز وجل څخه د طالبانو اسلامي حکومت ته توفیق غواړو چې په خپل دریځ باندې کلک پاتې شي لکه څنګه چې تر اوسه پورې ورباندې کلک ولاړ دي، او هم دوی

ته توصیه کوو چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم پسې نېکه اقتداء وکړي او غربیانو ته هغه جواب ورکړي کوم چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم د وخت مشرکانو ته ورکړی وه، چې په ذکرو شوو ایتونو کې ورته اشاره شوې ده.

اسلامي امارت یا د وعدې مصداق:

موجوده زمانه کې[1] یوازې د افغانستان اسلامي امارت دی چې د کفارو څخه عمومًا

او د امریکا د حکومت څخه خصوصًا نه ډارېږي، که څه هم پروسکال یې ورباندې کروز توغندي وورول او سږ کال یې ورباندې اقتصادي بندیزونه ولګول خو د دې سره-سره اسلامي امارت لکه ونه مستقیم په خپل مکان دی که خزان ورباندې ورشي که بهار؛ په همدغه حال کې یې په زنانه وو باندې شرعي حجاب عملي کړ، د رسمي دوائرو څخه یې د کار کولو څخه منعه کړې او هم یې شرعي حدود اجراء کړه او د مختلط تعلیم مخه یې بنده کړه.

الله عزوجل دې وکړي چې په هره برخه کې شریعت عملي کړي او د رشوت مخه هم ونیسي او کوم زاړه کمونستان چې چرته غلي او پټ شوي دي هغوی هم د منځه یوسي. ترڅو د یو پلوه همدغه امارت په دې زمانه کې د ذکرې شوې وعدې مصداق وګرځي، او د بله پلوه د راتلونکي الخلیفه المهدي د راڅرګندېدلو زمینه مساعده شي_آمین یا رب العالمین.

**مذهب او عقیده**: شیخ سلطان عزیز رح په عقیدوي لحاظ د اهل السنت والجماعت د مسلک د علماوو ګروهمند او لاروی و، او په فروعاتو کې یې د حضرت امام ابوحنیفه رح مذهب د خپلو اسلافو او اجدادو په څېر تر پایه د خپل مسلک په توګه پېژانده، دیوه مسلمان او پیاوړي مستدل حنفي په صفت پاتې شوی او د نورو خلکو لارو پسې ندی تللی.

## خارجي سفرونه:

• پنځه حجونه او دوه عمرې.

• د روسانو په خلاف د جهاد په مهال په سوډان هیواد کې په جوړ شوي نړیوال کنفرانس کې د افغانستان د مجاهدینو یو اته کسیز هیئت د مجاهدینو په استازیتوب ګډون وکړ، شیخ صاحب د دې پلاوې غړی و.

• په ۱۹۸۲م = ۱۳۶۱ش کال د افغانستان د مجاهدینو د اسلامي اتحاد یو پلاوي سعودي عربستان ته سفر درلود ، په دې پلاوي کې شیخ صاحب هم موجود و او د وخت له ولي العهد او د وزیرانو د شورا له نائب رئیس امیر عبد الله بن عبد العزیز سره یې وکتل.

• شیخ صاحب د مجاهدینو په هغه هیئت کې هم شامل و، چې په ۱۳۶۴ هـ ش کال کعبې ته د داخل شو.

## دیوه خطیب په بڼه:

د پېښور د هجرت کلي په جامع مسجد کې یې تر یوې مودې د امامت او خطابت دنده په غاړه وه.

## دوزارت دنده:

• د مجاهدینو د حکومت د تاسیس په مهال شیخ صاحب د مهاجرینو د چارو وزیر اعلان شو خو دنده یې تر سره نه کړه.

## د وحدت لپاره هلې ځلې:

د هغه هیئت غړی و چې د تیر جهاد د مجاهدینو د صف د یووالي د راوستلو او د اختلافاتو د ختمولو لپاره کابل ته تللی و.

همدارنګه یې په دې اړه خپلې انفرادي هلې ځلې هم جاري ساتلې وې او په دې سلسله کې یې په مسلسله توګه څو ناستې درلودې ، چې په کې یې د وخت د تنظیمونو د مشرانو له نماینده ګان راټول کړي وو ترڅو په یوه خبره سره راټول شي.

## د شیخ التفسیر مولوي سلطان عزیز صاحب د ځینې استاذانو نومونه:

---

[1] عزیزالتفاسیر جلد 8 صفحه 529.

۱ـ مولوي عصمت الله، د ننګرهار ولایت د غني خیلو ولسوالۍ د ګلایي د کلي او سیدونکی.
۲ـ مولوي عبد الغفار. د ننګرهار ولایت د غني خیلو ولسوالۍ د ګلایي د کلي او سیدونکی.
۳.مولوي نورمحمد د شمالي د باغ عالم اوسیدونکی.
۴.مولوي عبد المنان تګابي، مشهور په پنجشیري مولوي صیب.
۵.مولوي عبد الحنان، د شمالي د باغ عالم اوسیدونکی.
۶.مولوي عبد الرحیم، د لغمان
۷.د کوه دامان د چیکل مولوي صیب محمد حسین.
۸.د کوه دامان د توتون درې مولوي صیب خان ګل.
۹.مولوي محمد شریف مشهور په کامې مولوي صیب.
۱۰-مولوي عبد الشافعي د ننګرهار ولایت د مزینې.
۱۱.عبد المجید کدیخیلی د ننګرهار ولایت.

## مشهور شاګردان:

د مولوي سلطان عزیزرح شاګردان ډیر زیات دي، خو د مثال په ډول یې، د کمونستانو په مقابل کې د اسلامي خوځښت مشهور مخکښان: استاذ محمد یاسر، شهید مولوي حبیب الرحمن، او شهید مولوي محمد اکرم همت (خوګیاني) دیادونې وړ دي.

## علمي آثار:

د عقایدو په ارتباط کتاب، چې لا چاپ شوی نه دی.

د میراث کتاب چې د مریضۍ له امله نه دی بشپړ شوی.

المشکلات فی تفسیر القرآن (د مریضۍ لامله تقریبا په نیمایي کی پاتې شوی).

صرف العزیز، چې تر اوسه پورې درې ځلې چاپ شوی دی او په لومړي ځل په ۱۳۴۳ هـ ش کال چاپ شو.

عزیز التفاسیر، لیکنه یې د الله تعالی په توفیق دار الهجرة پاکستان کې د جمعې په شپه په دوو بجو په ۱۴۱۱/۲/۳ هـ ق=۱۳۶۹/۲/۲ هـ ش نیټه پیل شوه، او د الله تعالی په مرسته په ۱۴۲۲/۴/۱۲ هـ ق=۱۳۸۴/۱/۳۱ هـ ش کال پای ته ورسید.

ددې تفسیر په هکله لاندې معلومات په لوستو ارزي:

الف: دا تفسیر په پښتو روانه ژبه دی او د "عزیز التفاسیر" په نامه نومول شوی دی، چې په دیارلسو (۱۳) ټوکو او اووه زره پنځه سوه اویا (۷۵۷۰) مخونو کې، د احادیثو په ګاڼه سمبال، د فقهاؤ کرامو په اقوالو مشتمل، مستند کتاب دی، او د اسرائیلیاتو او ضعیفو اقوالو څخه پاک دی.

دا کتاب د خلکو د پوهې مختلفو طبقو ته په پام سره د آیتونو ژباړه او تفسیر، فقهي او عقیدوي احکام، شان نزول، صرفي او نحوي تحلیلونه، د کلمو لغوي او شرعي معناګانې، عبرتناکې کیسې، د قرآن په رڼاکې ساینسي څیړنې او په روانو مختلفو پېښو تبصرې، د افغاني ټولنې ستونزو ته کتنه، او د هغو پوښتنو ځوابونه په خپله غېږ کې رانغاړي، چې د تلاوت په وخت کښې چا ته په ذهن کې راپورته کېږي، او د یته ورته ګڼې نورې لاندې ځانګړ تیاوې یې د یادونې وړدي:

## د تفسیر تګلاره:

اول: په روانه ژباړه کې ځینې قیدونو ته د قوسونو تر منځ ځای ورکړل شوی دی، تر څو ترې هغه لوستونکي ګټه پورته کړي، کوم چې زیات فرصت نه لري او د وخت د کمبود له کبله یې په مضامینو باندې په ځغرده خپل ځان پوه کول غواړي.

دوهم: د ژباړې څخه وروسته د ایاتونو د مضامینو خلاصه لیکل شوې ده. البته دا د هغه چا لپاره چې وخت ورسره زیات وي او اوږده بیان ته یې زړه نه تنګېږي.

دریم: بیا وروسته د (توضیحات) عنوان ایښودل شوی دی، تر څو د هغو لوستونکو عمومًا او د هغو علماوو کرامو خصوصًا تنده ماته کړي، کوم چې په موضوعاتو کې ډیر تحقیق او تدقیق خوښوي.

د همدې کبله د ذکر شوي عنوان لاندې مختلف مطالب. لکه فقهي احکام، صرفي او نحوي تحلیلونه، لغوي او شرعي معناګانې، ځنې ګټورې کیسې او متلونه او داسې نور.

د تفسیر طریقه او طرز یې د سلفو صالحینو او ثقه مفسیرینو غوندې په لاندې ډول دی:

الف :د قران کریم تفسیر په قران کریم سره.

ب :د قران کریم تفسیر د پیغمبر صلی الله علیه وسلم په احادیثو سره.

ج :د قران کریم تفسیر د صحابه کرامو رضی الله عنهم په اقوالو او تر هغو را لاندې د معتبرو او لویو مفسرینو په اقوالو سره، خو د دې تر څنګ یې د عربي لغت او عربي ژبه او نور قوانین هم په تفسیر کې له پامه نه دې غورځولې. د مشکلو آیتونو په تفسیر کې یې د معتبرو مفسروینو تفسیرونه د حوالې سره را نقل کړي، او په پای کې یې ځینو او یا یوه تفسیر ته ترجیح ورکړې ده، خو اکثره یې د جمهورو رائې ته ترجیح ورکړې ده.

هـ :د متشابهاتو په هکله یې تګلاره د اصحابو رضی الله عنهم او سلفو صالحینو ده.

و :د اسرائیلیاتو څخه بېخي پاک دی.

ز :فني اصطلاحات یې په ساده ژبه تشریح کړي دي.

ح :د معاندینو اعتراضاتو ته یې غاښ ماتوونکي ځوابونه ویلي دي.

ط :داهل سنت والجماعت دعقایدو یې کلکه دفاع کړې ده.

ک :د لوستونکي په ذهن کې چې کومې احتمالي پوښتنې پیدا کیږي هغه یې ځواب کړیدي.

ل :د شان نزول او د سورتونو ترمنځ یې د ارتباط یادونه کړیده.

م :د لغاتو معنی، صرفي او نحوي تحلیلونه یې کړي دي.

ن :فقهي احکام، دفقهاوو آراء او په پای کې یې د خپل حنفي مسلک فیصله ذکر کړې ده.

س :د تفسیر لیکلو په جریان کې د معتبرو او ثقه مأخذونو او مراجعو څخه استفاده کړې ده چې شمېرېې (۱۴۹) ته رسیږي.

## اولادونه:

۵ زامن او دوه لورګانې.

**زامن:** مولوي تبيان الحق عزیز حقاني: له جامعه دارالعلوم حقانیې اکوړه ختک څخه فارغ اولیسانس یې په عربي ژبې او ادبیاتو کې ترلاسه کړی دی.

دکتور اظهار الحق عزیز: په عربي ژبې او ادبیاتو کې دکتورا (د اسلام اباد نړیوال اسلامي پوهنتون)

نبراس الحق عزیز: د تربیه اسلامي عالي لیسې څخه فارغ شوی، دنړیوال اسلامي پوهنتون د اصول الدین په پوهنځي کې لیسانس اخستی، اوس د ماسترۍ په مرحله کې بوخت دی.

اسامه عزیز: د تربیه اسلامي عالي لیسې څخه فارغ ،شرعیاتو او قانون پوهنځي کې د ماسترۍ مرحله په (نړیوال اسلامي پوهنتون) کې تر سره کوي.

شهید حذیفه عزیز: چې د لیسانس په مرحله کې و.

## دفراق شیبې :

د وفات نیټه: **۵/۵/۲۰۱۳**م د شپې تقریبا **۳**نیمې بجې د پېښور په نارت ویست هسپتال کې یې داجل داعی ته لبیک وواېه اودخپل ابدیت په لور روان شو، چې بیا دخیبر پوښتونخوا په نصرت مېنه شمشتو کې یې جنازه کې زرګونو علماوو، مجاهدینو او مهاجرینو برخه واخسته اود درندو اسلامي مراسمو په ترڅ کې خاورته وسپارل شو.

(انا لله وانا الیه راجعون ان لله ما اخذوله ما اعطی وکل شئ عنده باجل مسمی)

الله ج دې یې دانبیاوو ،صدیقینو او شهداوو په صف کې حشر وکړي آمین

لوکانت الدنیا تدوم بواحد
لکان رسول الله فیه مخلدا

# روغن زیتون و اهمیت آن در درمان امراض

طب نبـوي

محمد موسی (صدیقي)

روغـن زیتـون (فارسـی) زیـت الزیتـون (عربـي) Olive Oil (انگلیسی)

رنگ: زرد مائل به سبزی- مزاج: گرم، تر -

1. حضرت اسید الانصاري رض روایت میکند کـه جناب رسول اکرم صلی الله علیه وسلم فرمودند: کلوا الزیت وادهنوا به فانه من شجرة مبارکة (ترمذي، ابن ماجه، دارمی)

یعني روغـن زیتـون را بخورید و بـدن خود را بـا آن مـالش نمائید زیرا این از یک درخت مبارک میباشد. همین روایت از ابو سعید الخدري رضي الله عنه و در مستدرک الحاکم از حضرت ابو هریره رضي الله عنه نیز منقول است.

2. حضرت علقمه بـن عـامر (رض) روایت میفرمایـد کـه جناب رسول اکرم صلی الله عیلـه وسلم فرمـوده است: علیکم بزیت الزیتون، کلوه وادهنوا بـه فانـه تنفـع مـن البواسیر (ابـن الجوزی)

یعني نزد شمار روغن زیتون موجود است آنرا بخورید و بـر بـدن مـالش نمائیـد زیـرا ایـن (روغـن) بـرای بواسیر مفیـد میباشد.

حضرت زیـد ابـن ارقـم روایت میفرمایـد: امرنـا رسـول الله صلی الله عیله وسلم ان نتداوي ذات الجنب بالقسط البحري والزیت. (ترمذی، مسند احمد، ابن ماجه)

رسـول الله صـلی الله علیـه وسـلم بمـا امـر کردنـد کـه ذات الجنب را با قسط بحری (قسط شرین) و تیـل زیتـون تداوی و معالجه نمائیم.

3. ابن القیم رحمه الله میفرماید روغـن زیتـون سرخ بـت از مائـل بـه سیاهي بهتر میباشـد، طبعیت را بحـال میکنـد، رنگ چهره را روشن میسازد، فعالیت شکم را به اعتدال مي آورد، کرمهای شکم را نـابود و خـارج میسـازد، موهـا را جلا داده تکالیف پیری را کاهش میدهد.

طبق تحقیق ذهبي (رح) موهـا و جسـم را تقویـه داده اثرات پیری را کم میکند، اکثراً با نوشیدن اشیاء چرب شکم خراب میشود، امـا روغـن زیتـون چنـین نیسـت بلکـه از آن مسـتثنی است، زیرا با وجود اینکـه روغـن است برای اکثریت امـراض شکم مصلح است.

روغـن زیتـون کـه از زمـان بسـیار قـدیم جهت معالجـه و از بـین بـردن امـراض گونـاگون جسـمی مـورد اسـتفاده عـوام و خـواص قـرار گرفتـه اسـت، ذکـر زیتـون در تـورات شـریف، انجیل شریف و قرآن عظیم الشان موجود است. میوهٔ زیتـون حـاوی ویتـامین ای، مـواد معـدني (همچـون پتـاس، گـوگرد، فاسـفر، آهـن، مـس، منگنـز، کلسـیم، مـواد صـمغی، مـواد چربی، مانیتول، کاروتن، سودیم، قند، نـوعی اسـید وروغـن میباشـد. روغـــن زیتـــون در مـــوارد زخمهـــای بـــاز وبســـته، ســوختگي، زیبـائی و در شـادابی پوسـت تـاثیر فـوق العـادهٔ دارد، در عصر حاضر ماهرین حسن و زیبایی برین متفق اند که تیل زیتون دارای صفات فروانی میباشد با مالش این تیـل دردهـای کهنـهٔ عضلاتي از بـین میـرود و یـا اقـلا کـاهش مـی یابد و به اطفال نوزائیده بعد از غسل دادن از مالش ایـن تیـل برایشـان قـوت و شـادابي حاصـل میشـود، همچنـان بـرای

امـراض جلـدی اکسـیر اسـت، در نشـو نمـا و از بـین بـردن خشـکی موهـای سـر نقـش بسـزای دارد، کمـزوری موهـا و موخوره را هـر زائـل میسـازدو در حفاظـت موهـا از امـراض و

## توت فرنگی کلسترول خون را کاهش می‌دهد

یـک کارشـناس تغذیـه گفـت: تـوت فرنگـی یـا زمینی کلسترول خون را کـاهش داده و نقش بسزایی در کنترل فشارخون دارد.

فرزاد بابایی در گفت و گو با ایسنا، توتفرنگی را به عنوان منبع سرشار ویتـامین »ث« معرفی کرد و افزود: این میوه حاوی فیبرهای محلول در آب فراوان است که باعث کاهش کلسترول و تری گلیسرید خون می‌شود.

به گفته این کارشناس تغذیه، پتاسیم فراوانی در توت فرنگی وجود دارد که در کنترل فشارخون موثر است و مایعات خون را نیز تنظیم می‌کند.

وی یـادآور شد: ممکـن اسـت تـوتفرنگی بـرای برخـی افـراد آلـرژیزا باشـد و باعـث ایجـاد کهیـر و عـوارض پوستی خصوصا در ناحیه اطراف دهان شود و چنانچه این مشکل بـا دارو مرتفع نشود مصرف این میـوه بـه افراد دارای حساسیت توصیه نمی‌شود.



به گفتـه ایـن کارشـناس تغذیـه، بـه دلیـل آلـرژیزا بـودن توتفرنگی استفاده آن برای کودکـان زیـر یـک سـال نیـز مناسب نیست. این کارشناس تغذیـه معتقـد اسـت: تـوت فرنگی محل تجمع اکثر میکروب‌ها در این میـوه اسـت و توصیه می‌شود قبل از مصرف برگ توتفرنگی کـاملا جدا شده و خود آن مدتی در آب قرار گیـرد تـا میکروبهـا احتمالی موجود در آن خارج شود.

سفیدی زود رس بسـیار مفید اسـت. مشـاهدات اطبـاء سـابقه در رابطه به روغـن زیتون بوعلی سـینا میگویـد روغـن زیتـون هر گاه کهنه شود طبیعت آن مانند روغن شیرین میگـردد وی میگوید اگر روغن زیتـون چهـار هـزار سـال کهنـه و سـابقه هـم باشد هنوز هم مفید و قابل استفاده میباشد.

کسـانیکه بطـور مسلسـل و دوامـدار بـا ایـن روغـن سـر (موهای) خود را مـالش وچرب میکند نه موهای آنها میریزد و نـه هـم قبـل او قـت سـفید میشـود، بـا مـالش تیـل زیتـون د ر اعضاء قوت می آید درد عضلات از بین میرود بعض اطبـاء مالش آنرا برای مرگی مفیـد قـرار داده اند، وجع المفاصل و عرق النساء را زائل مسـیازود، زخمهـای دهـن را زود منـدمل میکند، گلو را صاف میکند تـاثیرات زهـر را از بـین میبـرد. اطباء آنرا در از بـین بـدن سـنگ تلخـه (مراره) نیـز مفیـد قـرار داده اند. حتی عدهٔ از استادان قدیم روزانه یکمقدار مناسـب تیـل بـه مریضـان داده کـه بـا آن سـده هـای مجاري صـفراوي خارج گردیده بعض اوقات در اثناء همین عمل ینـگ ویـزه هـا نیـز خـارج میگـردد اکثریـت اطبـاء بـه ایـن باورنـد کـه روغـن زیتـون هم غـذاء اسـت وهـم دواء بـرای امـراض گـرده کـه در آن غـذاهای دارای نـائتروجن مناسـب نمیباشـد در آنجـا روغـن زیتـون یـک غـذا، مقیـد قابـل اسـتفاده میباشـد بـه جـا هـای سوزش تسکین میدهد، سـوزش روده هـا را کـاهش میدهـد، شکم را ملائم میکند ماهرین هندوستان آنرا در تـداوی فلـج، عرق السناء، دردهای عضلات و مفاصل بیحد مفیـد یافتـه است آنها مشوره میدهد که باید بطور اعظمی هم در مالش و هم در خوردن ازین روغن استفاده صورت گیرد.

مـاهرین جاپـانی و افریقـای شـمالی (مـاهرین طـب) روغـن زیتــون را در ســرطان روده هــا مفیــد قــرار داده انــد آنهــا میگویند که ایشان چنان هیچ شخصـی را مشـاهده نکـرده انـد که روغـن زیتـون را میخـورد و بـه سـرطان شـکم مبـتلا باشـد، آنهـا بـرین بـاور انـد کـه تـا مـدت دراز اگـر از روغـن زیتـون اسـتفاده صـورت گیـرد و خـورده شـود بـا آن مـریض سـرطان معده و روده ها صحت یاب خواهد شد.

د هیوادنامتو ادیب او شاعر ښاغلي ګوهري صاحب :

# دیمکراسي زمونږ اسلامي کلتور د غربي کلتور غلامول غواړي

## شعر هغه دی چې پیغام پکې پروت وي او زړه ته ولوېږي

**پوښتنه:** ښاغلی ګوهری صاحب! که څه هم پیژندګلوي ته دې اړتیا نشته ځکه د هیواد هر وګړی ستا له شعرونو سره دومره بلد دی چې ته والیدلی به یې وې، خو ددې لپاره چې نوی او ځوان کهول دې ښه وپیژني نو هیله ده په خپله ژبه خپل ځان موږ ته راوپیژنې؟

**ځواب:** د لوی څښتن (ج) په سپیڅلي نامه

زما نوم ملا درمحمد (ګوهري) د ملا نیک محمد زوی په ختهه ابراهیم خیل د لوګر ولایت د برکي برک ولسوالۍ د ځلیزیو سیمې د ابراهیم خیلو د کلي اوسیدونکی یم.

**پوښتنه:** زدکړې دې چیرته او تر کومه بریده تر سره کړي او هغه استادان چې ډیر فیض او برکت دې ترې ترلاسه کړی که ممکنه وي نومونه یې راته ووایې؟

**ځواب:** لومړنۍ زدکړې مې له خپل مشفق او مهربان پلار او د جومات له امام څخه پیل چې د اوو کلو په عمر د برکي برک د تګاب په لومړنۍ ښونځي کې شامل شوم چې د جومات له سبق سره یوځای مې د ښونځي زدکړې هم په ډیره مینه پر مخ بیولې، له دریم ټولګي څخه چې بریالی شوم مهربان پلار مې وفات شو نو د خپلې ګرانې مور په اجازه او لارښونه مې دیني مدرسې ته مخه کړه، لومړنۍ دیني زدکړې مې د لوګر د پادخواب روغني په مدرسه کې له خدای بښلي مولوي محمد ایوب (سجاوندي) څخه پیل کړي له څه مودې وروسته کلنګار، محمد آغې، وردګو، کابل، میدان، ده سبز او جلال اباد ته د علم په زده کړه پسې مسافر شوم.

په دې موده کې کله چې د کلنګار د قلعه غفار په مدرسه کې له مولوی محمد یونس سره دیره وم تقریباً ددولسو یا دیارلسو کلونو په عمر به وم چې د شعر الهام راته وشو.

د څو کلونو تحصیل په موده کې مې صرف، نحو، منطق، حکمت، اصول، فقه او ځینې د حدیثو او تفاسیرو کتابونه ولوستل، کله چې زما عمر دوه ویشت کلنۍ ته ورسید د تعامل سره سم د وخت د حکومت له خوا عسکري خدمت ته جلب شوم، څرنګه چې ما فنون تقریباً سرته رسولي و او د حدیثو او تفاسیرو کتابونه مې هم څه ناڅه لوستلي و د مدرس په صفت مې مجلا وکړه چې له امتحان نه وروسته منظور او له عسکري خدمت څخه معاف شوم او ممتاز بری لیک راکړل شو.

زما ټول استادان زما لپاره د قدر وړ دي خو چې ما ډیر فیض ترې ترلاسه کړیدی د یو څو محترمینو نومونه دادي، محترم استاد کل مولوي محمد ایوب (سجاوندي)، محترم استاد کل مولوي سید اکبر (دلاور) محترم استاد العلماء الحاج مولوي عبدالاحمد (مجاهد) (رح) او په پای کې د

پاکستان د مردان د قیامیه دارالعلوم سر مدرس او شیخ الحدیث مولانا عبدالرازق صاحب، البته د قرآن عضیم الشان د ترجمې په برخه کې مې له محترم شیخ الحدیث مولانا حمدالله جان صاحب ډاګۍ او د دارالعلوم حقانیه اکوړي له نامور شیخ الحدیث مولانا شیر علی شاه صاحب څخه فیض حاصل کړیدی.

**پوښتنه**: د روسانو او کمونیستانو په خلاف دې په جهاد کې عملي ونډه هم اخیستې او که نه، که دې اخیستې وي پیل یې له کومې سیمې او د چا تر قومندې لاندې وو؟

**ځواب**: هو کې – کله چې د روسانو په مټ او مستقیمه همکاری د خلق پرچم له خوا کمونستي کودتا وشوه اسلامي عنعنات، شعائر او قوانین تر پښو لاندې شول چې د یوې لویې غمیزې پیلامه وه ددې بدمرغې کودتا دوه، درې میاشتې لا نه وې تیرې چې مرحوم حاجی مولانا عبدالاحمد (رح) د کلنګار د الوزیو د دهنو مدرسې ته چې مونږ هلته له مرحوم مولوي سید اکبر (دلاور) سره دیره و راغی او له مولوی سید اکبر (دلاور) صاحب سره یې د جهاد د پیل په هکله څه پټه مشوره وکړه او بیرته ولاړ، کله چې حاجي صاحب رخصت شو مرحوم مولوي صاحب مونږ طالبان سره راټول کړ او د جهاد د دعوت وظیفه یې راوسپارله، موږ هم سم له لاسه د جهاد په دعوت پیل وکړ او صادق مسلمانان او طالبان مو جهاد ته تیارول چې لومړنۍ غونډه مو د مولوي صاحب سید اکبر دلاور په مشری په میروال کې وکړه.

کله چې دلوګر مشهور روحاني شخصیت کلي اخندزاده صاحب د کمونستانو له خوا ونیول شو او مولوي صاحب سید اکبر دلاور یو مشهور دیني اوسیاسي څیره وه اود ظاهرشاه په حکومت کې دشوری وکیل و هغه د کمونستانو له خوا تر سخت تعقیب لاندې و نو محبوراً یې پاکستان ته هجرت وکړ او مونږ هم نور تعلیم ته خاتمه ورکړه څه موده وروسته زه هم پاکستان ته مهاجر شوم.

کله چې د جهاد د باني مرحوم مولوي محمد نبي محمدي د حرکت انقلاب اسلامي دامیر له خوا د کمونستانو پرضد د جهاد اعلان وشو، په ډلو ډلو افغاني طالبان د پاکستان له مدرسو نه میرانشاه ته د جهاد د زدکړې او ترینګ لپاره تلل، زه هم د جهاد د زدکړې په منظور میرانشاه ته ولاړم او هلته مې څه موده په مامه خیلو سیمه کې د جهاد زدکړه وکړه چې زما د هغه وخت د ترینګ ملګری د زابل ولایت ملاموسی کلیم شهیدملامدداخوند، د غزني قاري بابا، د کابل قاري قیوم او د لوګر شمس الله صاحبزاده د حصارک چې زما د ترورزوی و، بل راجي الرحمن، ملا صادق او شهید ملا عبدالواحد او داسې نور و.

لنډه دا چې مونږ څوارلس تنه طالبان د لوګر ولایت ته په یو سفر راستانه شو، په لوګر کې مو لومړی د دعوت او تنظیم چارې دشهید ملا خوشحال او مولوي صاحب حاجي عبدالاحمد په مشري سرته رسولې.

په کال ۱۳۵۸ د ثور ۱۹ نیټه چې د مولوي محمد نبي (محمدي) له خوا په لوګر کې د جهاد یو مخیز پاڅون اعلان شو اوله هیڅاسره وسله نه وه چې مجاهدینو ته مو توضیع کړې وای، نو مسلمانانو ته مو هدایت وکړ چې که څوک په کور کې چړه یې، ګلیټې او یا توره لري راوایې خلی، سهار ته د لوی خدای (ج) په مرسته په خالي لاسونو په ولسوالی او ولایت حمله کوو.

څرنګه چې د لوګر خلک په طول د تاریخ کې مجاهدین دي او د علماؤ خبرو ته غوږ نیسي او عمل پرې کوي، چا ټوپک راواخیست، چا توره راواخیستله چا بیل او چارې، چا سوټې راواخیست، ما په خپله یو چاقو درلود راوامې خیست لنډه دا چې له هر کلي نه واړه زاړه او ځوانان راپورته شول، زمونږ له توقع نه پورته په ولسوالیو او ولایت باندې دومره زیات عالمونه ورروان شول چې د خدای (ج) په غیبي مرسته اود الله اکبر په کفر ماتوونکو نارو په لنډ وخت کې د لوګر ټولې ولسوالی او د ولایت مقام فتحه او مجاهدینو ته زیاته وسله لاسته ورغله خو څرنګه چې له مونږ سره هوایي

مدافع قوت نه و د ملحدينو د بې شميره طيارو او ټانګونو په بدرګه مو ولايت بيرته له لاسه ووت خو د برکي برک ولسوالی تر دريو ورځو د مجاهدينو په ولکه کې وه چې مرحوم حاجي عبدالاحمد پکې ولسوال وټاکل شو او شرعي حکمونه يې پکې جاري کړل چې له هغه وروسته د کمونستانو يو زيات شمير ټانګونه او طيارې د وردګو او لوګر ولايت له لوري راغلل چې ډير بې ګناه مسلمانان يې په ډله ايزه توګه شهيدان کړل حتی چې يو مسلمان يې د مسلمانانو د ويرولو په غرض په هليکوپټر کې پورته کړ، هليکوپټر ډير لوړ شو او دا مظلوم مسلمان يې لاندې راوغورځاوه چې ټوټه ټوټه شو.

د لوګر مسلمانان مجبور شول چې د ولسوالی انګړ پريږدي، که ددې کيسو او د کمونستانو د ظلمونو لړی په تفصيل سره وليکل شي کتابونه به ترې ډک شي، دلته ما د نمونې او لنډيز په شکل دا څو کرښې وليکلې.

له هغه وروسته په دوبندي کې د مجاهدينو جهادي مرکزونه تشکيل شول، له هغه ځايه به وخت ناوخته په کمونستانو حملې ترسره کيدلې چې خوشبختانه زه هم ددې بهير ملګری وم، کله چې د الحاج عبدالاحمد مرحوم په قومانده او مشرتابه په آبجوش کې د مجاهدينو مستقل مرکز جوړ شو او ملا محمدالله شهيد يې قوماندان وټاکل شو، ددې مرکز يو فعال غړی زه هم وم.

که زه د خپل جهادي بهير په جزئياتو مفصل وګړيږم دلته يې ګنجايش له امکان نه لرې خبره ده، په لنډ ډول به همدومره ووايم چې د آبجوش له مشهور مرکز نه چې په کمونيزم او روسي ښکيلاک ګرو کومې حملې ترسره کيدلې په زياترو کې يې ما په فعالانه توګه ونډه لرله چې په لومړي سر کې مې د تګاب ابراهيم خيلو، الفشاخيلو، شيخانو او مهمندو د مجاهدينو د مسئول په صفت وظيفه اجرا کړې.

**پوښتنه**: چې کله ګاونډي هيواد پاکستان ته مهاجر شوې هلته چيرته ميشت شوې او ړومبی جهادي بوختياوې او هڅې دې کومې وې؟

**ځواب**: د کورنی له مهاجر کيدو وړاندې کله چې زه پيښبور ته د مجاهدينو د اکمالاتو لپاره تللی وم چون ما د عملي جهاد ترڅنګ له شعر، ادبياتو او اخبار ليکنې سره زياته مينه لرله د حرکت انقلاب اسلامي د جمعيت طلبه په مرکزي دفتر کې ماته د کار کولو او بوختيا بلنه راکړل شوه چې د مرحوم امير صاحب مولوي محمد نبي محمدي په امر او غوښتنه مې د عملي جهاد پرځای په قلمي او فکري جهاد پيل وکړ چې بيا وروسته مې کورنی هم را مهاجره او د چراټ په جهاد کلي کې ميشت شوم.

په لومړي سر کې مې د حقيقت الاسلام جريدې د مسؤل مدير په حيث کار کاوه چې بيا وروسته د جمعيت طلبه حرکت د فرهنګي څانګې د مرستيال او د مطبوعاتو د عمومي مدير او د اجرائيه شورى د غړي په صفت دندې ترسره کړې چې په دې لړ کې مو د نوموړې جريدې ترڅنګ د (ايثار) په نامه مجله چې په پښتو او دري ژبو خپريده، افغاني طلبه کی آواز اردو مجله، قافله نور مجله او راز راز جهادي او اسلامي کتابونه او رسائل چاپ کړيدي چې بيلګې به يې اوس هم له ځينو پخوانيو مجاهدينو سره وي.

**پوښتنه**: جناب! له کوم جهادي ګوند سره چې تاسو خپل جهادي هاند او هڅې پرمخ بيولې، داسې ويل کيږي چې د نوموړي ګوند مطبوعاتي او فرهنګي چارې ډيرې ګړندی نه وي، علتونه يې څه وو؟

**ځواب**: د پينځمې پوښتنې په محتوياتو کې پوره نه يم درسره موافق ځکه ترخپله وسه پورې مونږ په نشراتو کې چټکتيا کړيده څرنګه چې له نوم نه يې څرګنديږي چې زمونږ جريده د حقيقت الاسلام په نامه ياديده مونږ به تل زيار ايست چې حقيقت خلکو ته څرګند شي، هسې لفاظي پکې ونه شي، کوم جهادي راپورونه به چې د جهاد له مورچلونو راتلل مونږ به ډير په دقيقه توګه

ځیږل، واقعي خبر به موترې جوړاوه بیا به مو نشر ته سپاره او کوم مضامین، مقالې، مطالب او اشعار به چې ورونږو رالیږل مونږ. د هغوی په هر اړخ باندې نظر زغلاوه چې د کوم جهادي او اسلامي ګوند پر خلاف څه پکې نه وي ځکه حرکت انقلاب اسلامي یو دیني، مذهبي او جامع تنظیم و چې د تاریخ په اوږدو کې یې د هیڅ اسلامي ګوند په خلاف کار نه دی کړی نو مونږ به هم د خپل محبوب مشر په مدبرانه لارښوونه په مطبوعاتو کې د تفرقې او تنظیم بازي توري لرې کول او بیا به مو نشر ته سپارل چې طبعاً به یو څه ځنډ پکې محسوسیده.

بله دا چې ټولو ته څرګنده ده چې زمونږ د تنظیم مالي وضعه ډیره چربه نه وه له دې سره سره چې ډیر لوی او سراسري تنظیم و ډیره کمه بودیجه یې لرله چې علت یې هر چاته معلوم دی، مونږ نشوای کړای چې په دې کمو امکاناتو د جهاد راپورونه او نور مطالب په کم وخت کې راټول کړو نو طبعاً به یو څه ځنډ پکې راتلو چې دا زمونږ په سهلنګاری نه حمل کیږي.

**پوښتنه**: رښتیا هم چې د حرکت انقلاب اسلامي افغانستان یو لړ علمي او فرهنګي خدمتونه په زړه پورې وو، لکه د تنویر المجاهدین تر عنوان لاندې د تالیفاتو او رسالو لړۍ وه، که په دې باب لږ رڼا واچوی چې تنویرالمجاهدین د چا هڅه وه، مهم رول پکې د چا وو، څو ګڼې چاپ شوه، سرپرستي یې چا کوله او دغه کامیابه سلسله ولې د ځنډ ښکار شوه؟

**ځواب**: محترمه! تاسو د تنویرالمجاهدین د رسالو یادونه وکړه دا علمي لړۍ د مولوي محمد نبي محمدي په ځانګړي هدایت، د مولوي عبدالله فیض الباري تر ریاست، د هیواد دنامتو شیوخو او علماء کرامو، لکه مولوي صاحب سیدعمر، مولوي صاحب فضل الرحمن، مولوي صاحب عبدالرحمن، مولوي صاحب عبدالواحد پکتیاوال او مولوي صاحب شیخ الحدیثانو لکه ... په هاند او هڅو او د مرحوم مولانا عنایت الله صاحبزاده صاحب چې په (پادشاه صاحب) یادیده په خاص ابتکار او هلوځلو د مجاهدینو د عبوری حکومت د دفاع وزارت په چوکاټ کې چاپ او نشر ته سپارل کیدې چې البته د تصحیح، کره کتنې او چاپولو دندې یې زما عاجز په غاړه وې چې تر اتو ګڼو پورې دا لړۍ په ښه بریالیتوب روانه وه کله چې کمونیستي منفور رژیم را نسکور او قدرت مجاهدینو ته انتقال شو، مونږ بیا هم په ډیره مینه کوښښ کاوو چې په خپل آزاد هیواد کې دیننه بیا د تنویرالمجاهدین لړۍ جاري وساتو خوله بده مرغه د خپل منځي جنګونو له امله مو ونشوای کړای چې دې لړۍ ته ادامه وکړو او له سقوط سره مخ شوه.

**پوښتنه**: د حرکت انقلاب اسلامي افغانسان د عمومي امیر محترم محمدي صاحب د غوره خصلتونو او ځانګړتیاوو په اړه که څه راته ووایې؟

**ځواب**: د خدای بښلي امیر صاحب ټول اخلاق غوره او د یادولو وړ دي چې د هیواد نر او ښځې یې په ښو اخلاقو پیژني بلکې معاندین هم دده د غوره اخلاقو یوې برخې ته د انتقاد ګوته نه شي نیوی چې دا زمونږ لپاره د افتخار او سر لوړی نښه ده.

هغه یو متل دی چې مشت نمونه خروار!

زه به د جناب مرحوم امیر صاحب مولوی محمد نبي محمدي یوه کیسه د بیلګې په توګه درته وکړم، کله چې د افغانستان ولایتونه یو پر بل پسې له کمونستانو نه مجاهدینو ته تسلیمیدل په هیواد کې دننه او دباندې د مهاجرینو په خورو ورو کمپونو کې د فتحو زیري کیدل، د حرکت انقلاب اسلامي یو شمیر غښتلي فاتح مجاهدین او قومندانان پیښور ته راغلل او د حرکت انقلاب اسلامي محترم امیر صاحب ته یې عرض وکړ چې د هیواد زیاتره ولایتونه په بشپړه توګه زمونږ تنظیم ته تسلیم شوي دي په نورو ولایتونو کې هم زمونږ ونډه زیاته ده اوس ځینې اسلامي ګوندونه غواړي چې په زبردستی سره له مونږ نه دغه ولایتونه ونیسي سره له دې چې مونږ یې د مقابلې پوره توان لرو ستاسو هدایت او

قوماندي ته سترګې په لاره یو که مهرباني وکړی مونږ ته له هغوی سره د مقابلې او جنګ امر راکړی.

جناب امیر صاحب څرنګه چې هر کار او هر حرکت یې له حکمت او تدبر نه ډک و، خپلو قوماندانانو ته یې داسې وویل (زامنو! ما د حرکت تنظیم د قدرت او ځان مطرح کولو په منظور نه دی جوړ کړی بلکې زمونږ مطلب له سرو کفارو څخه زمونږ د پاکې او اسلامي خاورې خلاصول و چې لله الحمد د یونیم میلیون شهیدانو په ورکولو او د میلیونو مسلمانانو کونډو یتیمانو په مهاجر کیدو او ستاسو د بې دریغه سرښندنو او قربانیو په نتیجه کې د لوی خدای (ج) په غیبي مرسته دې مقدس ارمان ته ورسیدو، ددې قربانیو بدله به الله (ج) په ورځ د قیامت در کوي، ګوری پام کوی چې د وسلې شپیلۍ مو د کوم مجاهد په لوري وانه ړوی.

که د کوم ګوند مجاهدینو په ولایت حمله کوله ولایت ورته پریږدی، که په ولسوالۍ یې حمله کوله هغه ورته پریږدی، ګوری چې د کوم مجاهد وینه در څخه تویې نه شي چې بیا یې په ورځ د قیامت نه زه ځواب ویلی شم او نه هم تاسې، دا زما آخیرنۍ او قاطعه فیصله ده(.

د امیر صاحب په دې خبره ټول قوماندانان مایوسه او خپه شول، ساړه ساړه اسویلي یې وایستل، زه هم په دې مجلس کې ناست وم خدای شته زه هم ډیر خپه شوم.

وختونه تیریږي، ډیر وخت لا نه و تیر چې په کابل کې د قدرت په سر جنګونه پیل شول چې په نتیجه کې یې پنځه شپیته زره د کابل ښاریان شهیدان او ښیرازه کابل په یوه داسې ویرانه بدل شو چې بیرته آبادیدل یې اسانه خبره نه ده.

بیا هم امیر صاحب کابل ته د سولې لپاره څو څو ځله تشریف راوړ تر څو په دې لمبو اوبه تویې کړي خو په جنګ غوښتونکو یې هیڅ اثر ونکړ او په ډیره مایوسۍ به بیرته ستون شو.

کله چې د حرکت قوماندانانو په کابل کې دغه بې ځایه وینې تویدل لیدل نو د مرحوم امیر صاحب په پریکړه یې آفرین ویل او دا به یې ویل چې که د امیر صاحب په مدبرانه او دحکمت نه ډکه فیصله مو عمل نه وای کړی اوس به مونږ هم په دې خونریزۍ کې ککړ و – دا وه د خدای بښلي امیر صاحب د ښو اخلاقو یوه نمونه.

**پوښتنه**: مننه، دروسانو په خلاف دمرحوم امیر صاحب مبارزه، جهاد، خدمتونه له هیچا پټ ندي، خو دامریکایي یرغل په مقابل کې د هغه د صریح دریځ په اړه که څه معلومات راکړي، ځکه داسې خبري هم د یولړ حلقو له لوري کیږي چې امیر صاحب د ژوند په ورستیو ورځو کې کرزي ته کوم لیک استولی وو؟

**ځواب**: ترکومه چې زه معلومات لرم د خدای بښلي امیر صاحب دریځ دروان اشغال په مقابل کې داسې کلک او صریح و لکه د روسانو په خلاف، ما په دې لنډو شپو ورځو کې د مرحوم امیر صاحب داسې یو صوتي فتوی هم اوریدلې چې هم یې امریکایانو ته مشورې ورکړي چې پام د افغانستان په حریم یرغل ونکړي، هم یې ګوت څنډنې ورته کړي او هم یې پرخلاف د مقدس جهاد فتوی ورکړي، پاتې شوه کرزي ته د لیک استولو موضوع اول خو زه له دغسې یوه لیک نه خبر نه یم او فرضاً که موجود هم وي، په کلک باور ویلی شم چې هغه به جعلي او هسې به چا د ځاني ګټو لپاره جوړ کړي وي.

**پوښتنه**: ګوهري صاحب! اوسنۍ ۱۳ کلنې دیموکراسۍ افغاني ادب او فرهنګ ته څه ورکړل؟

**ځواب**: محترمه! کله چې د دیموکراسۍ کره او ناولی نوم یادیږي سم له لاسه ماته د کمونستانو توره دوره راپه یاد شي، هغوی به د کمونیزم پرځای همدا توری کاراوه ځکه که یې د کمونیستي نظام یادولی د مسلمانانو کرکه او نفرت ددوی په وړاندې لا زیاتیده، اوسني یرغلګر و ګومان کاوه چې ددیموکراسۍ نوم اخیستل له کمونیستي نه لږ نرم دی که رښتیا را باندې وایې دیموکراسي زه هم نه پیژنم ځکه دا خارجي لفظ دی په اصلي مفهوم یې زه نه یم خبر خو چې ددې لفظ نتیجې ته زه په افغانستان کې ګورم دیموکراسي

يعنې فحاشي، عرياني، اسلام دښمني، خپل سري او ځو ډمې راډيوګانې چې زموږ د ځوان نسل اخلاق يې را فاسد کړل، زموږ اسلامي کلتور او افغاني مقدس دودونه يې د غربي کلتور غلام کړل، که تاسې يې په هر نامه يادوي زما له نظره ديموکراسي زموږ د اسلامي او افغاني دودونو او رواجونو په خلاف ده.

**پوښتنه**: که د خپلو تاليفاتو او ادبي اثارو په باب معلومات راکړئ؟

**ځواب**: ګرانه زما شعرونه ډير زيات دي، د لومړنيو شعرونو يوه غټه برخه مې له منځه تللې هغه په دې چې د کمونيستانو له کودتا راوروسته چې جهاد پيل شو نو طبعاً د کمونيزم له خوا په کليو کې تالاشي ګانې زياتې شوې، ما د هغوی له ويرې ځه کتابونه غره ته يووړل او هلته مې دا کتابونه او خپل شعرونه چې لا چاپ نه وو په غره کې له يو کمر لاندې خښ کړل، څرنګه چې موږ په مرکز کې چې په بل غره کې يې موقعيت درلود اوسيدلو کله نا کله به کومه شپه کور ته راغلو او بيرته به په پټه تلو تر څو کلونو پورې له خپلو شعرونو او کتابونو نه وم خبر وروسته له څو کلونو چې ورغلم نه زما کتابونه و او نه مې د شعرونو کتابچې، ټول سيلونو او بارانونو وړي و، له هغه وروسته مې چې کوم ګوډ او مات شعرونه ليکلي دي لومړنۍ شعري ټولګه مې (د وينو درياب) په نامه په کال ۱۳۶۰ هـ ش بله مې (د لعلونو خزانه) په ۱۳۶۳ هـ ش بله مې د (تير ماښام) په نامه په کال ۱۳۷۱ هـ ش بله مې د (سارايي خيالونه) په نامه په کال ۱۳۸۶ هـ ش کې چاپ کړيدي.

البته د شعرونو يوه ټولګه مې د مجاهدينو د حکومت پر مهال چې مولوي والاجان وثيق د اطلاعاتو او کلتور وزير و چاپ ته تياره کړې وه او د چاپولو امر يې هم را کړی و په مرکزي کميټه کې چې زموږ د شپې ځای و ددوستم له خوا د مرمۍ په لګيدو چې زموږ بسترې، کتابونه او زما جهادي اسناد او دغه شعري ټولګه پکې وه وسوځيدل چې د هغو اشعارو هيڅ شی په لاس رانغلل.

بله مجموعه مې (ريښتونې مينه) نعتيه کلامونه دي چې چاپ ته تياره ده.

بله مجموعه مې د (غوره اشعار) په نامه هم لاتر اوسه له چاپ نه پاتې ده، نور شعرونه هم لرم که ژوند و راټول او ان شاءالله چاپ به شي.

پر دې برسيره لنډې کيسې، داستانونه او ادبي ټوټې هم لرم چې ځينې يې په ورځپاڼو او مجلو کې چاپ شوي ځينې لا پاته دي.

**پوښتنه**: د تيرو څه باندې ديرشو کلونو په اوږدو کې د خپلو رسمي او مهمو دندو په اړه هم لږ توضيحات راکړئ؟

**ځواب**: د جهاد او هجرت د دورې دندې خو مې درته بيان کړې کله چې په کابل کې مجاهدين قدرت ته ورسيدل زه د ښونې او روزنې په چوکاټ کې د معارف د مطبعې د مرستيال په دنده وګومارل شوم چې بيا وروسته د نوموړې وزارت د نشراتو د رئيس مولوی فقير محمد (خنجري) په غوښتنه او پيشنهاد د نشراتو د مرستيال په صفت وټاکل شوم چې بيا خپل منځي جګړو زور واخيست او د حرکت امير صاحب له دغه حکومت سره مقاطعه اعلان کړه، ماهم خپلې پښې له دغه ځايه سپکې کړې او په کور کيناستم، کله چې د طالبانو تحريک را مينځته شو لومړی د ګرديز د راديو د رياست دنده راوسپارل شوه چې بيا وروسته يې د کابل په مرکزي راډيو کې د هنر او ادبياتو د رئيس په دنده مقرر کړم، تر هغو پورې مې په ډير اخلاص خپله دنده پرمخ بيوله ترڅو چې غربي ښکيلاک ګرو د امريکا په مشرۍ پر افغانستان يرغل وکړ او اسلامي امارت خدای خبر کومې خوا ته ولاړ بيا زه کور کيناستم او لا تر اوسه په کور ناست يم، خدای خبر وروسته به څه پيښيږي.

**پوښتنه**: د شعر په رابطه که راته څه ووايئ؟

**ځواب**: د شعر په باره کې به څه درته ووايم، شعر خو هغه دی چې لکه د رحمان بابا، د حميد بابا، د حافظ

د استاد بیدل او نورو کلاسیکو او پخوانیو شاعرانو، اوس خو له شعر نه مسخره جوړه شوې ده لکه چې د حقانیه دارالعلوم باني او مهتمم مرحوم حضرت مولانا عبدالحق (رح) به د عبدالله صاحب په باره کې هغه وخت ویل چې دوی دواړه حیات و چې عبدالله نوښاري دی خدای دې ژوندی لري دده ډیر خواږه خواږه او په زړه پورې اشعار او نعتونه دي خو دده د شعرونو له برکته ټول نوښاریان شاعران شول، له اشعارو نه یې مسخره جوړه کړیده وایي چې

)چرګ زما چرګان زما – ګرځي په ډیران زما(

)ګرځي په ډیران زما – چرګ زما چرګان زما(

زما په نظر شعر هغه دی چې یو پیغام پکې پروت وي، زړه ته ولویږي، نه داچې نا پیژندل شوي پردي توري راټول کړي نه یې وزن معلوم وي نه یې قافیه معلومه وي آخر چې بله لار ترینه ورکه شي د آزاد شعر نوم پرې کیږدي.

زه آزاد شعر نه ردوم خو زمونږ د افغاني کلتور برخه یې هم نه بولم، ځینې شاغلي لا دا هم وایي چې تر څو به په شعرونو کې د عربو تقلید کوو، لومړی خو زه له دې ښاغلو سره دا نه منم چې په پښتو شعر کې له عربو تقلید شوی ځکه که د پښتو ژبې د لرغوني او لومړني شاعر امیر کروړ شعرونه وکتل شي هغه ټول مقفا دي لکه چې دی وایي:

زه یم زمری پر دې نړۍ له ما اتل نشته
په هند او سند او په تخار او په کابل نشته
بل په زابل نشته له اما اتل نشته

دغه زار د بیټ نیکه مناجات که څوک ولولي هغه هم مقفا دی لکه:

لویه خدای لویه خدایه
ستا په مینه په هر ځایه

غر ولاړ دی درناوي کې
ټولې ژوې په زاري کې

دلته دي د غرو لمنې
زمونږ کیږدی دي په کې پلنې

دا وګړي ډیر کړې خدایه
لویه خدایه لویه خدایه

هسک او مځکه نغښته ستاده
د میړو وده له تاده

دا پالنه ستاده خدایه
لویه خدایه لویه خدایه

که بیا یې ورسره ومنو چې په پښتو شعر کې له عربو تقلید شوی دا خو ډیره ښه او پرځای خبره ده ځکه پښتانه لله الحمد ټول سل په سلو کې مسلمانان دي زمونږ قرآن په عربي ژبه دی، زمونږ محبوب پیغمبر حضرت محمد صلی الله تعالی علیه وسلم عرب دی، مونږ که له عربي ژبې په خپلو شعرونو کې تقلید وکړو دا به څه ناروا خبره نه وي بلکې دابه زمونږ د کلک ایمان نښه وي او که خدای مکړه له غربي او یا بل کوم کلتور نه تقلید کوو او افتخار هم پرې کوو دا خو لا پریده چې خپل اصیل افغاني کلتور تر پښو لاندې کوو بلکې د هغوی کلتور ته په عربي کلتور ترجیح ورکول زما په نظر د ایمان خطره ده چې خدای پاک دې هر مسلمان په تیره بیا مجاهد افغانان ترې وساتي – آمین.

پای

مرکه کوونکی : نیازالله ' حنفی '

# اسلامي هيوادونو کې د (شريعت) د نفاذ هيلې!

هڅـــــــــانـد

ډيـره دخوشـــحالۍ خبـره ده ،چــې داســـلام دقســم خوړلودښمنانو په فريب او مکردعثمـاني خلافت دنړيدو څخـه شاوخوا نهـه لسـيزې وروسته داسلامي امت لـه ځوانانوسره بيا داسلامي شريعت دنفاذ فکرپيدا شوی او دتر سره شويو سروي ګانواو نظر پوښتنو له مخې په ځغرده له خپلو واکمنوغواړې چې دهيوادونو رسمي قانون دې يې اسلامي شريعت شي.

له هغه وخت وروسته چې دلويځوهيوادونوبرتانوي او فرانسوي استعمار (يهودواونصاراوو )د ګډې دسيسې پـه پايله کې دترکيې ناخلفه او غلام ضميره (مصطفی کمـال اتـاترک )پـه (1342هـ / 1924م )نيتـه دنړۍ مسلمانان د اسلامي خلافت له هغه نعمته محروم کړل چې دواک ابعـاد يـې د(اسـباب سـقوط الخلافـة العثمانيـة )دحـوالې لـه مخـې ( ۲۰۰۰۰۰۰ )شـل ميلونـه کيلـومتره مربـع ځمکـه وه ،اوپـدې دومـره لويـه ځمکـه اسلامي خلافت حکومت کاوه ، دصدر اسلام له فاتحانو (دخلفـای راشـده رضـی الله تعـالی عـنهم پـه قيـادت ، دفارسي لښکرومشر(رستم پهلوان ) تـه پـه قادسيې کې ماتې ورکوونکی او ددې تـاريخي فتحي علمبردارحضرت سعد بن ابی وقاص رض غوندې اتلان ، سرشاره اسلامي فاتح خالد بن وليد رض ،ددمشق د فاتح ابوعبيده بن جراح

رص ،دمصـردفاتح عمـر بـن العـاص رض ،دشـمالي افريقاد (حرب العبادله )څلور ګونې شهکاران ( عبدالله بـن عمر رض ،عبدالله بن زبير رض ، عبدالله بـن عباس رض او عبـدالله بـن سعد ) ،دکسـری (يزدګـر )دبـت کـدې نړونکـی دنهاوند د(فتح الفتوح )علمبردار (نعمان بن مقرن المزنی رض اودقبرس فـاتح معاويـه رض ) غوندې فاتحـانو څخـه راواخلـه تـر وروستنو اسـلامي فاتحـانوپورې چـې دخپلـو معصـوموونوپه تويولـو يـې دآسيا او افريقـا تـر( مـا وراء النهـر ،هسـپانيې ،روم او شـام پـورې لېـرې لېـرې سـيمې دخپلـو آسـونوپه ځغلولـو سره فـتح کـړې او د(فتح الفتوح

،حرب العبادله ،فتح الشام ،فتح القدس )او نورو مشهورو تاريخي غزواتو او فتوحاتو غوندې برياليتوبونه يې د اسلامي امت د تاريخ تلپاتې حافظې ته سپارلې دي ، چې دا دی نن هم د امت بچيان د(صلاح الدين ايوبي ،محمد بن قاسم او نورالدين زنگي )غوندې په اسلامي فاتحانو په ميړانو وياړې او جهادي حماسې يې خپلې وياړنې بولي .....

اوس چې ځوان کهول د غربي ولسواکۍ په حقيقت پوهيدلی او د خپلو اسلافو په څېر بيا د خپلو حکومتونو څخه په ځغرده غواړي چې د اسلامي هيوادونو نظامي ،اجرائيوي او تقنيني ځواکونه د شريعت په رڼا کې ټولنه ورغوي او ټول مدني او سياسي قوانين دې رسما شرعي شي ،د فطرت دين پر لوريو ستر پرمختګ دی او دې سره ديوه فلاحي معاشرتي نظام درغيدو د هيلو غوټۍ په غوړيدو ښکاري .

داهيلې هغه وخت غوړيږي چې د لويديځ مذهبي او سياسي مشرانو اسلامي نړۍ تر رواني ،اقتصادي او نظامي کلابنديو لاندې راوستې ،هغه مسلمانان چې ديرغلګرونه د خپل اسلامي حريم دفاع کوي ،خپلې ځمکې د هغوئ په واک کې نه ورکوي او د دوئ د غوښتنو مخالفت کوي ،هغوئ ته ترهګر او دهشتګروايي او هغه څوک چې خپل نظامونه پر اسلامي بنه رغول غواړي ،هغوئ هم يا زېښبي ، ياېې تر اقتصادي کلابندۍ لاندې راولي او يا يې د بشريت ،بشځو د حقوقو او نړيوالو قوانينو ناقضين بولي ،ترڅو مجبورشي ،د دوئ غير اسلامي غوښتنې ومنې او سر ورته ښکته کړي ،که منځني ختيځ ته ګورو هلته مسلمانان د خپلې لومړۍ قبلې (بيت المقدس )د خپلولو په جرم تر اسرائيلي وحشت سره مخ دي او چې خپله دفاع کوي ،نو بيا دهشتګردي !که عراق ګورو نو هلته يې جوړ نظام رنګ کړاو شيعه ګان يې د واک په ګدی کښينول ،عربي جزيره يې انچ انچ تر خپلې پوځي او سياسي سيورې لاندې راوستې ،يو عربي حکومت هم د اسې اسلامي شريعت نشي نافذولی ، چې د نړۍ مسلمانان پسې اقتداء وکړي ،لويديځوال افغانستان ته تر زرګونو کيلومتره لېرې واټن نه د هوا او ځمکې له لارې راغلي او د مسلمانانو د اغښتلی اسلامي هيواد يې نيولی ، چې دا دی مسلمانانو يې پر وړاندې دا دوولس کاله کېږي ،جهاد کوي او د خپلو وينو په نذرانو د دوئ پر خلاف ولاړ دي ،همدا سې نور افريقايي اسلامي هيوادونه لکه صوماليه ،سوډان او مالي غوندې هغه هيوادونه چې د اسلام بيرغ پکې ولسونو جګ کړی و ،لويديځو کفري (پاپانو )پسې خپلې خونکارې لښکرې وليږلې او ځمکه يې پرې سره کړه ، پدا سې حال کې چې هغوئ هيچاته خطر نه وو ، بلکې خپله خاوره باندې يې الهي ج نظام غوښت ، خو بيا هم پسې د نړۍ کفار وځانونه ورسول او هغه نظام يې له منځه يوړ ، د چيچنيا حالت هم له چانه پټ ندی ،چې هلته مسلمانانو خپله آزادي واخسته، نو د همدې لويديځوالو په لمسون روسي وحشيانو چيچنايان له خپل نظامه محروم کړل او د چيچين ولس مسلمان مشران لکه (جوهر دودايوف ،شامل بسايوف او سليم )غوندې فکري مبارزين يې په يوه او بله پلمه شهيدان کړل ...........لنډه دا چې د نړۍ پرمخ به يو دا سې هيواد هم نوي ،چې هلته د اسلامي شريعت بيرغ جګ شوی وي او لويديځوالو ته دې د دزغم وړ وي او يا دې يې د دې تحمل لرلای وي ، چې د الله ج دين دې د دنيا په کوم کونج او کنار کې حکومت وکړي !

خو د دې ټولو ناخواليو سربيره بيا هم د نړۍ د مسلمانانو سينو کې اسلامي ولولې تاندې او د الله ج د دين سره مينه او د اسلام روح هماغسې ژوندی دی او د يوه سرشاره خلافت اسلامي بڅرکي يې له سترګو راوربږي ،د نويو نظرپوښتنونه جوته شوي چې د اسلامي هيوادونو په نوم چې کوم مملکتونه شتون لري ،خلک يې ديوه شرعي نظام او شرعي قوانينو د رسمي کيدو غوښتنه کوي.

چې پدې اواخرو کې په واشنګټن کې مېشت د 'پیو ' څېړنیز مرکز وايي په ۳۹ هېوادونو کې یې له ۳۸ زره خلکو نه د ۲۰۰۸ او ۲۰۱۲ کلونو ترمنځ په دې اړه مرکې کړې دي ،چې ټولوورته ویلي ،چې دوئ خپلو هیوادونو کې دشرعي قوانینونفاذ غواړي اودايي ارمان دی ،چې دادی رسنیوکې دخپاره شوي دې په زړه پورې انکشاف څوکرښې داسې دي:

ډېری مسلمانان غواړي شریعت یې رسمي قانون شي !

یوې نړیوالې سروې موندلې، چې د اسلامي نړۍ ډېری وګړي غواړي چې اسلامي شریعت یې د اړوندو هېوادونو رسمي قانون وګرځي، خو دوی په دې کې سره وېشلي، چې څه دې په دې قانون کې شامل وي او څنګه دې پلی شي.

په واشنګټن کې مېشت د 'پیو ' څېړنیز مرکز وايي په ۳۹ هېوادونو کې یې له ۳۸ زره خلکو نه د ۲۰۰۸ او ۲۰۱۲ کلونو ترمنځ په دې اړه مرکې کړې دي.

شریعت د اسلام اخلاقي اصول او مذهبي قانون دی.

په اسیا ، افریقا او منځني ختیځ کې د پوښتل شویو مسلمانانو ډېری یې د دې پلویان دي چې اسلامي شریعت یې د هېوادونو د قانون په توګه ومنل شي.

دا به شرعي محکمو ته اجازه ورکوي چې د طلاق او د ځمکو پرسر کورنیو لانجو په اړه پرېکړه وکړي.

خو له دې سره سره په ډېرو هېوادونو کې د سختو سزاوو او په دې ډله کې د غلو د لاسونو له پرې کولو او له اسلام نه بل مذهب ته د اوښتو له کبله د مرګ سزا د ورکړې ملاتړ ډېر کم و.

مذهبي ازادۍ !

سروې کې د پوښتل شویو ډېری یې بیا د مذهبي ازادۍ پلوي کړې او وايي د نورو دینونو لارویانو ته باید اجازه ورکړل شي چې خپل مذهبي چارې ترسره کړي.

په ځینو اسلامي هېوادونو کې لړکۍ د تبعیض له شتون څخه شکایت کوي.

ډېرو دا خبره هم کړې پر دې باور نه لري، چې ګواکې د دوی د دین او عصري ژوند ترمنځ دې کومه ترینګلتیا وي.

په څېړنه کې ویل شوي، چې په ترکیه کې له پوښتل شویو خلکو څخه ۱۲ سلنې یې د اسلامي شریعت د تطبیق پلوي کړې، خو ۵۲ سلنې نورو بیا په تونس، ۷۱ سلنې، په نایجریا ، ۷۲ سلنې په اندونیزیا او ۷۴ سنلې په مصر او ۹۹ سلنې په افغانستان کې د اسلامي شریعت د تطبیق په پلوۍ رایه ورکړې ده.

اندونیزیا کې ۷۲ سلنه پوښتل شویو مسلمانانو د اسلامي شریعت د تطبیق پلوي کړې ده.

د امریکا ۸۱ سلنې مسلمانانو ویلي، چې تاوتریخوالی هېڅ توجیه نه لري.

خو وايي، په بنګله دېش، مصر، افغانستان او فلسطین کې تاوتریخوالی کول جواز لري

"له ۲۰۱۴ وروسته د افغانستان د راتلونکې اټکل نه شي کېدای "

له نیکه مرغه چې ددې سروې له مخې افغانستان په ټوله اسلامي نړۍ کې هغه ځلانده هیواد دی ،چې په سلو کې نهه نوي ٪۹۹ خلکو دا سلامي شریعت دتطبیق نظر ورکړی اوورپسې اندونیزیا ،نایجریااو تونس دي ،ددې سره سره چې لوید یځوکفري هیوادونو دافغانانو دبېلارې کیدو لپاره ښې ډېرې پیسې هم په خلکو وویشلې او دا سلام په دین یې ډیری افغانان هم شهیدان کړل او دالړۍ لا هم تنده روانه ده ،خو بیا هم همدا افغانان دي ،چې په خپل هیواد کې لومړی اوبیا په ټوله نړۍ کې د شرعي نظام او دالله ج دکتاب تطبیقول غواړي او ددې لپاره هرې قربانۍ ته چمتو دي !



# په اسلام کې د انډیوالۍ معیار

(حافظ شهاب الدین غوری)

موږ او تاسو ګڼ مضامین لوستي، لکه د ښځي حقوق په اسلام کې، دیموکراسي په اسلام کې، عدل په اسلام کې... او داسې ګڼ نور.

هر لیکوال هڅه کوي، چې په اسلامي اصولو او حدودو کې موضوع تشریح کړي، جواز او عدم جواز یې خلکو ته ثابت کړي. نن مو یوې جالبي موضوع ته متوجه کوم.

انډیوال چې د رفیق، دوست او ملګري په معنا ده، د لغت له مخې انډ وپوال ته ځکه انډیوال ویل کیږي، انډی د اوبښ، اس یا د خره د یو لوري بار ته ویل کیږي، تر څو چې یې دوهم لوری نه وي، نو لومړی لوری نه ټینګیږي، نو ځکه انډیوال یعني د انډي وال ورته ویلی کیږي، په ټولنه کې ګڼ خلک ځوک د اس، ځوک د اوبښ او ځوک د خره په شاه انډیوالیزم پالي. زموږ او ستاسو په ټولنه کې د انډیوال، ملګري، رفیق او دوست پوره اهمیت دی، دوه ملګري تل جوړه ګرځي، په غم او ښادۍ کې له یو بل سره منډې ترړلې وهي، تر دې چې په ځینو مهالونو کې تر خپلوانو هم د انډیوال فعالیت او خدمت زیات وي.

انډیوالیزم که د الله لپاره وي، د اسلامي اصولو سره سمه وي، نو پایلې یې مثبتي وي، دوام وموممي، د دنیا او آخرت د سرلوړي سبب وګرځي، خو انډیوالي که د الله لپاره نه وي، اسلامي اصول تر پښو لاندې شي، نو پایلې ناوړه، بیلتون را منځته شي او پالونکې یې تر پښو لاندې شي.

نن سبا ځیني خلک په غلا رشوت او ظلم او ناورا کې سره ملګري وي یا د هلک او انجلۍ، د سړي له هلک سره ملګري را منځته شي، چې دا انډوالیاني هر چاته معلومیږي، چې په ګناه سره ملګري شوي دي، نو ځکه ورته خلک د عیب په ستر ګه ګوري.

خو ځیني انډیوالیاني بیا داسې دي چې بظاهر خو مثبتې ښکاري خلک ورته د عیب په سترګه نه ګوري، نیوکه پرې نه کوي، خو حقیقت کې دا ډول انډیوالیاني ناوړه، ګناه او له اسلامي چوکاټ نه بهر وي.

د کابل او شاو خوا ځیني استوګن یو پردې کس ته انډیوالي بیا د ورورولي لاس ورکړي او وایې چې فلانی برادر خواندهٔ من است، له دې وروسته دوی دواړه په خپل منځ کې لکه سکه ورونه داسې شي، تر دې چې د دوی خویندې، ښځې، موراني هم ترینه پرده نه کوي او د شرعي محرم په سترګه ورته ګوري.

دا عمل د شریعت خلاف دی، ځکه د خولې په وینا ځوک

حقیقي ورور نشي ګرځیدای او نه هم شرعي محرم ګرځیدای شي، په همداسي توګه امپریالیزم، انډیوالیزم او قومیزم زموږ د هیواد په سیاسي میدان له تیرو څو لسیزو څخه خپلي پنجي خښي کړي دي.

رسول الله(ص) فرمایلي دي: اذا وسد الامر الی غیر اهلها فانتظر الساعة

ژباړه: کله چي کار اهل کارته ونسپارل شي، نو د قیامت انتظار وباسه، بظاهر ذهن لري قیامت ته ځي ولې په حقیقت کې له لوی قیامت څخه پرته نژدې قیامت ته اشاره شوي، چې غیر اهل ته د کار سپارلو په نتیجه کې به ستا ټول نظام او کاروبار سرچپه شي، که د دکان یا کاروبار غیر اهل ته وسپارې په څو میاشتو کې به کاروبار ختم شي، که یوه اداره غیر اهل ته وسپارې هغه به هم له ناکامي سره مخ شي.

په ګڼو حکومتونو کې د واک واګې له کوم لیاقت، صلاحیت، کمال، تجربې څخه پرته خپل ملګري ته سپارلي کیږي، خلک یو بې تجربې کس ته په تجربه کارو، استاذانو او عالمانو اهمیت او فوقیت ورکوي.

د افغانستان روان د کرزي اداره د همداسي انډیوالیزم ښکاره مثال دی، په ټولو دولتي منصبونو باندي د انډیوالیزم او د خپلوي د اصولو په نظر کې نیولو سره سم نااهله او بې کاره خلک ګمارل شوي دي، چې په پایله کې دا حکومت د نړۍ په فاسدو حکومتونو کې شمارل کیږي، ورځ تر بلې یې حالت خرابیږي، د قیامت صغری یعنی تباهی په لور روان دی. د انډیوالیزم په پاللو سره د هر قسم ګناه، ظلم، خیانت، رشوت، قتل، چور او چپاول دروازې خلاصیږي. ځکه ډیر ځلې مجرم د یو لوړ رتبه چارواکي انډیوال وي، نو نه د هغه په خلاف څوک شکایت کولای شي او نه ورته محکمه سزا ورکولای شي. مشهوره مقوله ده، چې: الملک یبقی مع الکفر و لایبقی مع الظلم، نا اشنا خبره خو دا ده چې په نن زمانه کې ځیني استاذان خپل شاګرد که هر څو نا اهله وي، د بل استاذ تر شاګرد څخه بهتر او د کار وړ ګڼي.

**لښکر په ایمان تلل کیږي نه د افرادو په شمیر.**

د یرموک په ورځ مسلمانان د روم د لښکر د زیات شمیر او ډیر والي څخه په ویره کې وو ځکه مورخین لیکي د روم لښکر درې لکه وو او د مسلمانانو لښکر څخه باندې دیرش زره او روم په هغه وخت کې ده نړۍ اول قدرت یا سوپرپاور حسابیده نو معلومه خبره ده چې هم په په وسلو، سورلیو او زغرو تر مسلمانانو ښه سمبال وو او هم یې د خوراک لپاره پریمانه سامان در لوده چې هو مره مسلمانان نه وو حتی یو چا و خالد بن ولید رض ته و ویل: رومیان څومره ډیر دي او مسلمانان څومره لږ دي خالد بن ولید رض ورته و ویل: ویحک داسي مه وایه بلکه و وایه مسلمانان څومره ډیر دي او رومیان څومره لږ دي لښکر په ایمان تلل کیږي نه د افرادو په شمیر او عدد.

د رسول الله صلی الله علیه وسلم له ارشاد سره سم باید په هره سطحه کار اهل کار ته وسپارل شي، د دې پرځای یو کس چې زموږ خپلوان وي، یا مو خوږ انډیوال وي خو نااهله وي، د هغه په نسبت هغه کس ته چې زموږ خپل او انډیوال نه وي خو اهل کار وي، کار وسپارو، له یو لوري څخه سړی به د امانت په خیانت کې نه شمارل کیږي او له بله پلوه به یې اداره او نظام د اوږدمهال پوري دوام او بقا ومومي. مشهور متل دی.

ژرنده د سوال په اوبو نه چلیږي
نظام د نااهله انډیوال په اوږو نه چلیږي



قاري محمود غزنوي

# د صلیبانو پر خلاف د روان پسرلي عملیات

# د خالد بن ولید په نوم ونومول شول

حضرت خالد بن ولید رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د لښکرو سرلښکر او په نړیواله توګه بې ساری نامتو او فاتح سپه سالار و، چې د حق په لاره کې یې داسې بې مثله سربښندنې کړې، چې مېړانه به یې د نړۍ تر وروستۍ سلګۍ پورې د مسلمانانو په زړونو کې ژوندۍ وي. هغه د اسلامي نړۍ یو داسې اتل دی، چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم له وفات څخه وروسته یې د خلافت پر خلاف ټولو بغاوتونو او پاڅونونو ته په ډېره مېړانه د پای ټکی کېښود او د عراق او شام سلطنتونو په فتحه کولو یې پیل وکړ، د مسلمانانو کم ځواک یې پر خورا قوي نړیوال ځواک بدل کړ، او د اسلام رڼا یې مفتوحه سیمو ته ورسوله. مختصر سوانح یې لاندې توګه وړاندې کیږي.

نوم او نسب:

حضرت خالد رضی الله عنه د قریشو د قبیلې د بنو مخزوم له څانګې څخه و او په اووم پلار (مُره بن کعب) کې د هغه د نسب لړۍ له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره یو کیږي. د هغه پلار ولید بن مغیره نومېده، چې د مکې د بډایو او د اسلام د سر سختو دښمنانو څخه و. حضرت خالد رضی الله عنه هم تر ډېرې مودې له اسلام څخه لرې پاتې و، خو دا چې رسول الله صلی الله علیه وسلم یې د مسلمانېدو په هکله دعا کړې وه، نو الله ج پرې ورحمېد او په اتم هجري کال په اسلام مشرف شو. نوموړی خپله کیسه داسې بیانوي: «کله چې ما غوښتل د رسول الله صلی الله علیه وسلم حضور ته ورشم له عثمان بن طلحه او عمروبن العاص سره مخامخ شوم، هغوی ته مې د پوښتنې په ځواب کې خپله اراده څرګنده کړه، بیا په ګډه سره ورغلو، سلام مې واچوه، پیغمبر صلی الله علیه وسلم د سلام ځواب راکړ او مسکی شو، ما خپل اسلام اعلان کړ، پیغمبر علیه السلام راته وفرمایل: اما چې ته د یو معقول انسان په توګه پېژندلې نو همدا مې هیله وه چې ستا پوهه به تا ارومرو د خیر خواته رهبري کوي.»



*په حمص کې د خالد بن ولید رضی الله عنه جامعه جیرته چې هغه خښ دی.*

د موت□ ج□-□ه : د حضرت خالد د اسلام راوړلو نه دوه میاشتې وروسته کله چې شرجیل بن عمرو غساني چې د

روم د قیصر عامل وو، د رسول الله ﷺ استازی حارث بن عمیر الازدي رضي الله عنه ووژل، د مؤتې غزا را منځته شوه، رسول الله ﷺ د شرجیل پر خلاف د زید بن حارثه رضي الله عنه په مشرۍ درې زره تنه د خپل استازي د قتل د کساد اخستلو په موخه واستول او هدایت یې وکړ، که زید شهید شو، نو د لښکر مشري به جعفر بن ابي طالب رضي الله عنه کوي او که هغه هم شهید شو نو عبد الله




ځخه به په هیڅ صورت کې نه په شا کیږي) غساني لښکرو سخت هجوم پرې راوړ، د هغه ښی لاس یې په توره پرې کړو، هغه بیرغ په چپ لاس کې ونیول، د حملې په بله چپه کې یې چپ لاس هم شهید شو، بیرغ یې د دواړو لاسونو په څنګلو (منګولو) ونیو، تر څو شهید شو، ویل کیږي، چې د هغه په جسم له لس کم سلو څخه زیات زخمونه را

بن رواحه رضي الله عنه به د لښکر مشر وي، که درې واړه شهیدان شوو، نو مسلمانان اختیار لري چې څوک هم د مشري لپاره غوره کړي.

کله چې د صحابه کرامو درې زره کسیز لښکر موتې ته ورسیدو نو ګورې چې دوه لکه کسیز لښکر یې مقابلې ته په انتظار ولاړ دی، (یعني یو مسلمان او شپږ شپیته کافران)، چې نیم یې رومیان او پاتې غسانیان وو. د دوی د کثرت په لیدو سره په لومړي سر کې مسلمانانو مشوره وکړه چې عقب نشیني وکړي، تر څو رسول الله ﷺ ته اطلاع ورکړي او نور امداد ورته را ورسیږي، خو عبد الله بن رواحه رضي الله عنه دا مشوره رد کړه، او مسلمانان یې په جګړه راضي کړو، د مؤته په میدان کې د دواړو خواو ترمنځ خونړۍ جګړه پیل شوه، چې زید، جعفر او عبد الله بن رواحة رضی الله عنهم یو په بل پسې له سخت او شدید مقاومت څخه شهیدان شوو، د رسول الله ﷺ د تره زوی حضرت جعفر طیار رضي الله عنه چې اسلامي لښکر بیرغ پورته کړ، هغه د جګړې میدان ته په داسې توګه را ووت، چې د خپل اس پښې یې په خپله په توره پرې کړې، (د هغه وخت له رواج سره سم په دې معنی وو، چې له جګړې

منځته شوي و، له هغه وروسته عبد الله بن رواحه رضي الله عنه بیرغ پورته کړو، یووار بیا جګړه توده شوه، تر وروستۍ سلګۍ پورې یې سخت جنګ وکړ تر څو شهید شو، له هغه وروسته د مسلمانانو د شریکې مشورې په نتیجه کې د لښکر مشري حضرت خالد بن ولید رضي الله عنه ته وسپارل شوه، یا هغه خپله بیرغ را پورته کړو او د لښکر مشري یې په غاړه واخسته، نو شپه په شپه کې یې د مسلمانانو د لښکر ټول لوري بدل کړو، میمنه یې میسره ته نقل کړه، مقدمه یې ساق ته او ساق یې مقدمې ته راوست او څه کسان یې لرې ولیږل چې د جګړې په اوږدو کې د مرستې لپاره راشي.

سهار چې رومیانو او غسانیانو ټول فوځ بدل ولید، او هغه پروني کسان ورته ښکاره نشول، هغوی فکر وکړو، چې مسلمانانو ته نور امداد را رسیدلی، خو کله چې د جګړې په اوږدو کې دوړې او غبار جوړ شو چې دلالت یې د بل نوې لښکر په را تګ کول، نو زړونه یې ولړزیدو، او عقب نشني یې غوره کړه، په همدې توګه خالد رضي الله عنه خپل لښکر په کامیابۍ سره له خونړۍ جګړې څخه را وایست. ویل کیږي چې د همدې جګړې په مهال خالد نهه توري یو پر بلې پسې ماتې کړې.

د دې جنګ په دوران کې رسول الله ﷺ په مدینه کې ناست و، یو ناڅاپه یې ترڅنګ ناستو صحابه کرامو ته وفرمایل: «زید رضي الله عنه بیرغ پورته کړ، شهید شو، الله تعالی ورته بښنه وکړه، ور پسې جعفر رضي الله عنه بیرغ واخیست هغه هم شهید شو او الله تعالی وبابښه، بیا عبد الله بن رواحة رضي الله عنه بیرغ واخیست هغه هم شهید شو الله تعالی وبابښه، او اوس هغه چا بیرغ پورته کړ، چې د الله د تورو نه یوه توره ده او هغه فاتح شو.»

حضرت خالد بن ولید رضي الله عنه له ۱۲۵ څخه په زیاتو جګړو کې برخه واخسته، په یوه جګړه کې یې هم ماتي نه ده خوړلې، ځکه هغه ته رسول الله ﷺ د سیف الله المسلول لقب ورکړی وو، یعني د الله جل جلاله پرېکونکې توره او په دې کې شک نشته چې د الله تعالی توره باندې ځوک نشي برلاسی کیدای او ماتولای یې نشي، نو ځکه حضرت خالد بن ولید رضي الله عنه په ژوند کې نه شکست وخوړ او نه په کوم جنګ کې شهید شو، هغه داسې وایي:

لقد شهدت مئة زحف أو زهاءها، وما في بدني موضع شبر، إلاوفيه ضربة بسيف أو رمية بسهم أو طعنة برمح وها أنا ذا أموت على فراشي حتف أنفي، فلا نامت أعين الجبناء .




ژبا□ه: وایي: ما له سلو څخه په زیاتو جګړو کې برخه واخسته، زما په بدن کې د یو ګوټي په اندازه ځای نه موندل کیږي، چې د توري، نیزې او غشي له ګزار څخه خوندي پاتې شوی وي او ټپي شوی نه وي، خو افسوس دی، بیا هم زه په خپل بستر په خپل مرګ مرم، نو پټې دې نشي د بزدلانو سترګې.

توپیر: د حضرت خالد بن ولید رضي الله عنه له نورو نړیوالو فاتحینو سره یو ځانګړی توپیر لري، هغه داسې، چې خالد بن ولید رضي الله عنه چې څومره فتوحات کړي، هغه تر ننه پورې ورسره دي، ولې چنګیز، تیمور، هټلر، نپولین، سکندر یا نورو چې څومره فتوحات کړي، هغه یې په ژوند کې یا لږ وروسته له لاسه وتلي

مشهوري ج□□□: حضرت خالد بن ولید په ګڼو جنګونو کې برخه واخسته چې مشهور یې دا دي: ، د مکې فتحه، د طائف فتحه، د موتې جګړه، د دومة الجندل معرکه، د یرموک جګړه، د یمامې جګړه، د اجنادین جګړه، د حلب فتحه، له دې څخه علاوه د عربو له قبائلو، د فارس او روم له امپراتوریانو سره ګڼې جګړې تر سره کړي.

والیانو ته د خالد رضي الله عنه د خط متن: حضرت خالد رضي الله عنه په خپلو جګړو کې تل بریالی و او د کسرا ټولو والیانو ته یې په دې مضمون خطونه لیږل: بسم الله الرحمن الرحیم، د خالد بن ولید لخوا د .....واکمنو ته!سلام دې وي پر هغه چا چې د سمې لارې پیروي کوي، اما بعد: ټوله ستاینه هغه الله لره ده، چې له تاسې یې پاچاهي واخیسته او ستاسې دسیسې یې شنډې کړې.... هر کله چې زما لیک در ورسیږي نو سملاسي خپل بیعتونه ماته را ولیږئ او فرمان ته غاړه کیږدئ او که نه نو، زما دې په هغه ذات سوګند وي، چې له هغه پرته بل معبود نشته چې زه به خامخا داسې کسان در ولیږم چې هغوی له مرګ سره داسې مینه لري، لکه تاسې یې چې له ژوند سره لرئ. حضرت خالد رضي الله عنه خپل تر اسلام راوړلو وروسته ژوند د اس پرشا، د تورو په برېښنا، د غیشو او نیزو په ځلا کې تیر کړ او په هغه ستر عبادت کې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته لوړه ځوکه ویلې ده ، چې هغه د الله په لار کې جهاد کول دې تیر کړ.

اطاعت: حضرت خالد بن ولید رضي الله عنه فتوحات په داسې چټکۍ او ګړندۍ توګه روان وو، چې خلکو هغه د فتحې زیری وګرځول او په خلکو کې مشهوره شوه، چې خالد رضي الله عنه په کومه جګړه کې وي نو فتحه به ارومرو راځي . له همدې

املہ حضرت عمر ﷺ هغه له دې ټولو فتوحاتو، سربښندنو او لاسته راوړنو سره سره له خپلې وظيفې څخه معزول او په کور

## د قران کريم مينه

يوه سرې نوی واده وکړ او کوښښ يې کاوه... چې خپلې ميرمنې ته قران کريم وريا دکړي او هغې به هم په ډيره مينه ومنله او دقران کريم حفظ يې پيل کړ. څه موده وروسته يوه ورځ سړی په خپل کور کې ديوه شي په پلټنه بوخت و چې يو صندوق يې پيدا کړ اودا صندوق يې له دې مخکې نه و ليدلی، دا يې دميرمنې ځانګړی صندوق و

کله يې چې صندوق پرانست په هغه کې يې د قران کريم د حفظ شهادت نامه وموندله او عجيبه داوه چې د ده دښځې په نوم وه !! سړی حيران شو چې زه هغې ته اوس قران ور يادوم اوداده هغه يې دومره موده پخوانۍ شهادت نامه لري

هغې بې په دې اړه پوښتنه وکړه هغې ورته وويل : تا له ما کله پوښتنه کړې ده چې ستا قران ياد دی که نه ؟ اوما ځکه نه درته وويل خو بې ته پخپله ماته ديوې ماشومې په څير راياد کړې .... کوم ځای مې چې خطا وي هغه به راوښيې او نور به هره ورځ ښه درس درته تيروم ، ته به ډالۍ او تحفې راته راوړې ... او لابه مې هڅوي (: ما نيت کړی خو تاته دا سې ښکاره کړم چې ته زما دقران کريم استاد يې خو که دخدای خوښه وه دواړه دقران په برکت يوځای جنت ته ولاړ شو ميړه يې له خوشالي وژړل او د خدای شکر يې ادا کړ چې لوی څښتن صالحه او په قران مينه ميرمن ورنصيب کړې ده الله دي زموږ ټول نارينه او ميرمنې په قران مين او داسې دې په قران او دهغه په ياد او زده کړه سره يوځای کړي.

کيناوو، تر څو مسلمانان په دې عقيده شي چې نصرت او کاميابي د الله تعالی په لاس کې ده، حضرت خالد ﷺ د اطاعت، نظم او ضبط داسې عظيم مثال ورکړ چې په تاريخ کې يې ساری نشته له چون او چرا څخه پرته يې اطاعت د حکم وکړو او په کور کيناست. خپل جهادونو او خدمات يې په چا احسان نکړل.

د خالد ﷺ د شخصي ژوند په اړه دومره زيات معلومات نشته، خو دومره ويل کيږي، چې ده له يوې رومي ښځې سره واده کړی و چې له هغې يې يو زوی د عبدالرحمن بن خالد په نامه هم پيدا شوی و

وفات: د حضرت خالد بن وليد ﷺ ستر ارمان دا وو، چې هغه د جګړې په ميدا ن کې شهيد شي، خو د شهادت پر ځای په خپله بستره وفات کيږي. هغه په ۲۱ هـ ۶۴۲ ميلادي کې د شام د حمص په ښار کې وفات شو او قبر يې د خالد بن وليد جامعې کې دی. هغه د خپل وفات په مهال د حضرت عمر ﷺ په لاس د خپل جائداد د تقسيم وصيت کړی وو. د هغه په وفات باندې ژړېدونکو ښځو ته حضرت عمر ﷺ وفرمايل: تاسې حق لری چې پر خالد وژاړئ، خو پام کوئ چې په لوړ آواز سره نه او سينې په سوکانو ونه وهئ...

د خالد بن وليد ﷺ په نوم د روان کال د عملياتو نومونه يو نيک فال دی، له دې سره به ان شاء الله کاميابي د افغانانو او د مسلمانانو په برخه شي او صليبيان به مغلوب او مفرور شي.

د يادونې وړ ده ، کله چې خالد بن وليد ﷺ په يمامه کې د نبوت د دروغجن دعوه کونکې مسيلمه کذاب په خلاف لښکر کشي وکړه، نو د صحابه کرامو په خپل منځ کې شعار يا محمداه و، هلته د نبوت له دروغجن دعويدار سره جګړه وه او اوس د نبي د حرمت پايمالونکو او توهين کونکو سره جګړه ده، نو مجاهدينو ته پکار ده، چې د خالد بن وليد ﷺ په څير خپل منځنی شعار يا محمداه هم د نيک فال په توګه وګرځوي.

* * *

# دمسلمانانو ارزانه وینه !!

'' رحیمي ''

دڅه باندې اویاملیونه خلکو په دې هېواد (برما) کې اته لکه شاوخوا مسلمانان هم ژوند کوي ، له تېر ۲۰۱۲ زکال جون میاشتې ۳مې نیټې راهیسې هلته له پنځوس زره زیات مسلمانان دبودایانو لخوا په شهادت رسول شوي ، د تاریخې لاسوندونو له درکه "اراکان" پخوادبرما برخه نه و ، "اراکان" ته اسلام دعوت دسترعباسي خلیفه "هارون رشید" دخلافت په دوره کې ځوتنو مسلمانو سوداګرو رسولی و ، دهم هغوئ په لاسودراکان خلکو اسلام قبول کړ ، کرار کرار دمسلمانانو شمېر اوځواک سیوا کیدتردې چې په ۱۴۳۰ز کې هغوئ په اراکان کې خپل حکومت جوړ کړ دسلیمان شاه په نوم یوتن دهغه حکومت پاچاغوره شو ،هغه حکومت چې تر درې څلورو پیړیو پاته و ، په دغه موده کې هلته یې ګڼ شمېر مسجدونه اومدرسې جوړې شوي ، هم داراز دمسلمانانو داجتماعي ژواندانه دښیرازۍ اوخوشالۍ لپاره یې ګټور ګامونه پورته کړل چې له امله یې مسلمان رعایادخپلو چارواکو څخه زیات خوشاله اوراضي وو ، په ۱۷۸۴ زکې داراکان په اسلامې حکومت دګاونډي هېواد برما دبودایت پال حکومت یرغل وکړ دیرغل په نتیجه کې یې اراکان په برما کې ضم کړ ، په ۱۸۲۴ز کې په برما دبریتاني د غلامۍ دوره شروع شوه کومه چې تریوې پېړۍ وغځیده ، بالاخره په ۱۹۳۸ز کې انګریزان له برما څخه ووتل ، دهغه وروسته برمایانو ازادې ترلاسه کړه ، ناڅاپه بودایت پالانو په ټوله برکا کې دمسلمانانو په نیست ونابودولو شروع وکړه ، داسلام او مسلمانۍ پېژندنې دآثارو اونښو په ړنګولو یې لاس پوري کړ ، دسلیمان شاه په دوره کې جوړ شو کړل شوي مسجدونه او مدرسې یې ړنګې کړې ، دمسلمانانو کورونو اوکلیو ته یې اوررونه واچول ،چې له امله یې ۵لکه مسلمانان برما ته پریښودو اړ شول ، کومو مسلمانانو چې دهجرت کولو توان نه لاره هغوئ خوران هلته کلابند پاته شول چې بودایانو په بې رحمۍ سره په شهادت ورسول ، دمسلمانان اوقاف یې په مال څرو بدل کړل ، لوډیسپیکر کې یې په اذان بندیز ولګاو ،دمسلمانانو ماشومان یې له دولتې ښوونځیو وشړل ، په دولتې وظیفویې دمسلمانانو تقرري لغوه کړه په ۱۹۸۲ز کې دپوځي حکومت راتلو وروسته په مسلمانانو ظلمونه لاهم نور تشدید شول اوپه همدې (۱۹۸۲)ز کې پوځې حکومت داراکان له مسلمانانو څخه دبرما تابعیت حق هم واخیست ، په دې داراکان مسلمانان نړۍ کې بې هېواده پاته شول..

برما ته اوس "میانامر" نوم اخلي ،دنفوسو ۸۹ سلنه یې بودایت پال جوړوي ، مسلمانان یکې ۴ فیصده دي ، دبرما په غربې ایالت "رخائن" کې میشت روهینګین مسلمانان تر ټولو دبد ستم اوظلم ښکاردي ، او دهمدې "رخائن" دویم نوم "اراکان" دی ، هلته دمیشت مسلمانانو شمېر ۸لکه دی ، دبرما بودایت پال دولت وایي :روهینګین مسلمانان دهند له نیمې وچې ورننو تي دي له دې وجې یې دوئ دبرما وګړي نه مني اونه ور ته برمایې وګړو سره مساوي حقوق ور کوي ، دبرما یا میانمر په ګاونډ کې پروت اسلامې هېواد بنګله دیش راځي ،هغه دروهنګین مسلمانانو په وړاندې خپلې ټولې تړلي بیاهم په دې سربېره څلورلکه روهینګین مسلمانان بنګله دیش کې په ناقانونه ډول میشت دي، یوبل څېز چې له امله یې بودایان مسلمانان دبرما وګړي نه مني ، هغه دا هم دی څه مهال چې له بریتاني دهند په نیمه کې وچه دداز ادۍ

ترلاسه کولو تحریکونه روان وو ه روهنګین مسلمانانو له ختیځ پاکستان (بنګله دیش) سره دیوځای کېدو غوښتنه کوله، خو هغه مهال داغوښتنه چا سمه وانه ورېده، په ۱۹۷۱ ز کې کله چې بنګله دیش له پاکستانه جلا کېد روهنګین مسلمانانو خپله پخوانۍ غوښتنه بیا وکړه، خو بنګله دیش ونه منله، داچې د روهنګین مسلمانانو تحریک ترشا بهرنی ملاتړ اوشاتړ نه وه دخپل هدف په ترلاسه کولو کې ناکام شو.

دبرما اوسني ولسمشر "تهین سین" ویلي: برمایي مسلمانان دې کوم دریم هېواد کې میشت کړای شي، په وینایې میانمر (برما) یواځې دبودایت دپیروانو لپاره دی.

ښکاره ده چې بودایت مت شپږمه عیسوي کې پیل شوی دین دی، چې ټول دین یواځې د "مهاتابود" په نومه له یوه تن راځرخي، ددې مذهب پیروانو لوی شمېرپه برما (میانمر) منګولیا، کوریا، کمبوډیا چین اوجاپان کې اوسي، بودایت مت پال هیڅ یو کتاب خپل لاربنود نه مني، کوم کتابونه چې مقدس بولي په هغو کې دهریوه لاربښوونې له بل توپیر لري، ځو شیان داسي دي چې دبودایت مت په هره فرقه کې شته، "شاکیه مني "دهغوئ مذهبي پیشواته وایي، هغه په مراقبه کولو کې ډېر مهارت لري، په مراقبه د "مهاتهانروان" پوري رسي، دهغوئ په اند مراقبه کول هغومره اهمیت لري څومره چې مونږ مسلمانانو ته لمونځ اهمیت لري، دبودایت مت دین ترټولو لویه عقیده داده چې هیڅ حالت کې هم دانسان یاعام ژوندي ساکښ له وژلو منع کوي، "شاکیه مني" خپل هر درس له دې وعظ څخه پیلوي: چې دهیڅ انسان اوساکښ وژل روا ندي!! بودایت مت کې له هرنوي بودایپه دې اړه عهد اخلي، چې هغه به هیڅکله مرګ نه کوي، هیڅ انسان، پرنده مرنده به نه وژني! هربودایت مت پال چې دقتل د جرم مرتکب شي، هغه سملاسي له بودایت مت نه بیرون ګڼل کېږي، له خپلې میرمني سره دهغه تن دازدواج اونکاح رشته لغوه کېږي، اولادونه به یې پلار نه بولي او مورو پلار یې هم له اولاد ګڼلو انکار کوي، دهغوئ دلوی پیشوا مهاتا په اړه ویل کېږي چې په ماشومتوب کې هغه یوه پرنده ویشتلي وه ټول عمر دهغه کړي جرم له امله غمژن و، د توبي غوښتونکی و او ترمرګ پوري یې دخپل ضمیر په هنداره کې خجالت محسوساوه، ددغه دین یوه ډله" زین مت "نومیږي هغه وایي: یوځل په قصداً مرګ کولو قاتل شخص بیا بودایت مت ته نشي داخلیدای، ترقیامت پوري دهغه اړیکې له بودایت مت سره پریک شول، که هرڅوک هغه دویم واري په بودایت مت کې داخل کړي هغه پخپله له بودایت مت څخه بیرون کېږي.

لکه وړاندې مو یادونه وکړه چې دبرما ۸۹ اوسیدونکې دبودایت مت دین پیروان دي، هلته چې کوم اته لکه روهنګین مسلمانان میشت دي، هغوئ ملګرو ملتونو دنړۍ ترټولو په تکلیف اوبد حالت کې ښکېل انسانان ګرځولي، هغوئ په برما کې له ټولو بشري حقونو محروم کړل شوي دهغوئ یولوی شمېر دبودایت مت پیروانو دظلمونو له امله هند، نیپال، تائي لیند، اندونیزیا، ملیزیا اوبنګال ته ګډه شوي

په دې وروستیو کې له عربي هېواد کویت نه خپریدونکې جریدې "المجتمع" پخپل یوه راپور کې انکشاف کړی دی چې په میانمر (برما) کې له مسلمانانو سره هغسې سلوک کېږي کوم چې په قرآن مجید کې د اصحاب الاخدود (دخندک والو) په نوم یاد شوي، یعني هغوئ به مؤمنانو ته خند کونه وکندل، هغه به یې له اوره ډک کړل بیا به یې ورته وروغورځول، نن په برما کې له مسلمانانو سره هغه سلوک کېږي، چې له امله یې له پنځوس زره څخه زیات مسلمانان په شهاد رسیدلي، دنړیوالې میډیا په مخکې دمسلمانانو کورونو ته اورونه اچوي، دمسلمانانو جوماتونو او مدرسو ته اورونه اچوي، دمسلمانانو شتمنۍ اودوکانونه په رڼا ورځ لوټوي، دبودایت مت ترهګرو دټولې نړۍ په مخ کې اعلان کړی دی چې داټوله سیمه به دمسلمانانو له شتون څخه وزګاروي، خوپه دې ټولو باندې دحقوق بشر تنظیمونه چوپه خوله دي، ملګري ملتونه ورباندې غوږ، قدري نه ګروي، هغه صلیبي هیوادونو چې عراق او افغانستان ته یې دخلکو ازادولو په پلمه ځواکونه رالیږلي ولې غلي ناست دي؟ هم داراز دمسلمانانو دحقونو مدافع تنظیم اسلامي کانفرانس ولې غوږونه کاڼه کړي، رابطه عالمي اسلامي ولې یواځې دخبرونو په نشرولو بسیا کړي؟ لنډه چې دنړیوالو ضمیرونه دڅارویو نه هم زیات داحساس اوفکر له صلاحیت څخه محروم شوي

ترکومه چې دمسلمانانو داوسنې حالت پوښتنه ده په دې کې شک نشته چې دایواځې دبرما غمیزه نده اوس مهال نړۍ کې دکشمیر څخه نیولې، ترفلسطین، عراق، شام اوافغانستا پورې مسلمانان داغیارو له لورې دوحشتونو اوظلمونو ښکار دي، او داوبو په څېر دمسلمانانو وینې ارزانه بهول کېږي، په عراق کې یواځې دامریکا یې ستم له امله لس لکه ماشومان شهیدان شول، په شام کې دولتي پوځ لاسونه دمسلمانانو په

وینو سره دي ، خو هیڅوک دپوښتنې نشته ، په اسلامي هېوادو کفري هیوادو لخوا تحمیل شوي واکمن یواځې دخپلو دواکمنیو ددوام لپاره مجرمانه چوپتیا نیولې ، خو که له هر اسلامي هیواد ددې ظلمونو په غبر ګون کې د وسلوال پاڅون غږ پورته شو نوهغه سملاسي ترهګر ګرځول کېږي پر ضدیې ځواک کارول کېږي ، لویدیځ هغه دځان لپاره ګواښ ګڼي ، اودتش په نامه ازادي میډیا له لاري دهغه په خلاف پروپاګند کوي

داخبره نشي هیریدای چې کله شوروي په افغانستا یرغل راوړو ،له ټولو اسلامي اوعربي هېوادونه مجاهدین په جهاد کې دګډون لپاره راغلل ، هغوئ دهیڅ کوم لالچ یا معاش په عوض نه وو راغلي ، نه هغوئ دلته دخپل حکومت جوړولو اراده درلوده ، هغوئ یواځې اویوځې دجهاد په جذبه سرشار دخپلو افغاني ورونو دکومک لپاره راغلي وو ، هر کله چې دهغوئ دقربانیو په نتیجه کې شوروي مات شو ، او په هم دغه وخت کې فلسطین کې هم داسرایل لخوا په مسلمانانو زمکه سور تنور وه ، داسرایل ترهګر دولت په زرګونو مسلمانان اومسلماني میرمنې په شهادت رسولي ،ددې ظلم په غبر ګون کې چې کله عربې ځوانان پورته شول ، اوپه دې پوی شول چې ددوئ حکومتونه ددې ستونزې په حلولو کې کامیاب نشول ، ملګري ملتونه اونوره نړۍ هم داسرایل په مقابل کې سوړ قدري نشي کولی او دهغه لپاره دلاسبوڅو او ګوډاګیو په حیث کار کوي ، په دې سره دمسلمانانو دحوصلو بندونه ونړیدل ، اوجهادي خوځښتونه راوټو کیدل نوپه وړاندې یې امریکا اوغرب معاندانه رویه غوره کړ اودهغوئ پځپلو لګیاشوهڅط له امله یې نړۍ دیوه لوی جنګ په ګراب کې کیوته.

اوس پوښتنه داده چې داوسني حالت راوستو مسؤلیت دچا په غاړه دی ؟ که په فلسطین کې مسلمانانو ته دهغوئ رواحقوق ورکړل شوي وای ، داسرایل دغلبې مخنیوی شوی وای په باور سره داشته حالت به نه راته ، لنډه داچې په عراق ، افغانستان ، فلسطین او کشمیر کې دظلم په خلاف جنګ روان دی ترڅو چې ظلم کېږي ، په وړاندې به یې مزاحمت اوجهاد روان وي ، دادظلم په خلاف یونه پای ته رسیدونکی جنګ دی ، اوس داچې په میانمر اونورو سیمو کې هم دمسلمانانو په ضد ظلمونه پیل شوي نو ملسمانان اودنورو هېوادو مسلمانان مجبور دي چې هلته هم دظلم په وړاندې دجهاد اومقاومت په شروع کولو فکر وکړي ، داسمه ده چې دبودایت مت پیروان په دې ډاډ من دي چې دروهنګین مسلمانانو ددفاع لپاره هیڅوک هم نه ورد رومي ، دهغوئ په مخکې دکشمیر ، بوسنیا ، عراق ، فلسطین ، افغانستان او دچیچنیامثالونه شته چې دنړۍ هیڅ یو اسلامي هېواد په دغو یادو هېوادو کې له مظلومومسلمانانو سره ولاړندی اونه ورسره مرسته کوي خوبیا دنړۍ ټول مسلمانان داسلامي هیوادو دواکمنو پشان بزدلان هم ندي اولړ نده چې خدای ( ﷻ ) ځینو ځوانانو ته دومره لوړه روحیه اومورال وبښي چې ددغو مظلومو مسلمانانو دفاع ته ځانونه وروړسوي .

داسمه ده چې دااسلامي هېوادو داوسنیوچارواکو خوبولي احساس ته په پام رښتیاهم راتلونکی وخت به دمسلمانانو لپاره زورونکی وي ، ولې مسلمانان دیوه بااعتماده قیادت د فقدان ښکار دي هرچېري چې مخلص مسلمانان شتون لري په هغوئ دترهګرۍ تورپوري کوي ، په دې لړ کې درسول الله (ﷺ) دلومړي خلیفه ابوبکر صدیق (رض) داوینا دمسلمانانو داوسني حالت عملي انځور وړاندې کوي : چې هر قوم جهاد ته شاکړه هغه به ضرور ذلیل کېږي ! په اسلامي هېوادوفرض دی چې نړۍ ته یو څرګند پیغام ورسوي چې هرچېري مسلمان لړ کیان میشت دي په هغوئ باندې دکیدونکو ظلمونولړۍ دنړۍ مسلمانانو لپاره دزغم وړ نده کنه پرضدبه یې په ټوله نړۍ کې دمسلمانانو قهرجنې ولولې راوپاري په ټولو اسلامي هېوادونو فرض ده چې هغوئ له برما سره هرډول سیاسي اقتصادي اړیکې ودروي ، څو چې هلته دمسلمانانوژوند اودفاع نه وي ډاډمنه شوي باید مسلمانان ورسره هیڅ ډول راکړه ورکړه ونکړي او هم هغه ډلې چې دمسلمانانو په قتل کې لاس لري دهغوئ دسملاسي محاکمه کولو غوښتنه دي وکړي!



# افغانستان کې د روسانو د بیا راښکېلو هڅې

حســــــن مومند

د محترمو لوستوالو په علم کې به وي چې څو ورځې وړاندې په نړیوالو مطبوعاتو کې داسې حیرانوونکې خبرونه او راپورونه خپاره شول چې په ۲۰۱۴ کې د افغانستان نه د ناټو له وتلو وروسته روسیه افغانستان ته د خپلو فوځیانو لېږل او په دې هیواد کې د فوځي اډو جوړول غواړي ، په راپورونو کې راغلي وو چې تر ۲۰۱۴ کال وروسته په افغانستان کې د فوځي اډو د یوې شبکې د رامنځته کولو په موخه د روسې د دفاعي چارو یو شمېر مسئولین د ناټو د مشرانو سره په خبرو بوخت دي او په دې اړه دقیق غور روان دی .

د روسې دا فوځي اډې به د بهرنو ځواکونو تر وتلو وروسته د افغانستان د اردو لپاره د وسلو او نورو جنګي وسایلو او تجهیزاتو د ترمیم او د اکمالاتو د مرکزونو په توګه کار کوي .

په مطبوعاتو کې خپاره شوي دا خبرونه په ګونګو سوا او اوازونه وو ولاړ بلکې د روسې یو لړ لوړپوړو چارواکو پخپله هم پدې اړه په خپلو څرګندونو کې دا خبره تائید کړې وه ، دمثال په توګه د روسې د دفاع په وزارت کې د نړیوالو همکاریوو د ادارې مشر سرګي کوشیلیف خبریالانو ته وویل : موږ په افغانستان کې د ترمیم خانوجوړولو لپاره پر بېلابېلو لارو غور کوو ترڅو د افغانستان نه د نړیوالو ځواکونو له وتلو وروسته په سیمه کې د روسې حضور پیاوړی شي ،،

همدا راز په ناټو کې د مسکو استازي ((الکساندر ګروشکو)) ویلي ووچې د جنوبي ققفاز څخه افغانستان ته د اکمالاتو د لارو د غځولو پر امکاناتو غور روان دی ، د روسې له لورې د اکمالاتو دا نوې لارې به د ترکمانستان او تاجکستان په خاوره کې تیرېږي

تېرېږي چې دا به د مسکو له خوا په افغانستان کې د فوځي اډو د جوړولو له پروګرام سره مرسته وکړي او هم به د ناټو او له امریکا له ځواکونو سره د افغانستان نه د وتلو په پروسه کې همکاري وکړي .

پر افغانستان د یرغل نه وړاندې بې له شکه چې شوروي اتحاد ډېر ستر فوځي ځواک و او دځواک هسته همدا اوسنۍ روسیه وه چې د ټولې منځنۍ آسیا هېوادونه یې د یوبل پسې اشغالول خو ټوله نړۍ یې دمخنیوي نه عاجزه وه ، د ققفاز ټوله سیمه یې قبضه کړې او شرقي اروپا یې هم تراشغال لاندې راوستې وه ، نه یې په نړۍ کې له چانه وېره کوله او نه یې هم دچا پرواساتله .

ناټو د شوروي اتحاد دلازیات پر مختګ او قبضو د مخنیوي په موخه رامنځته شوی غربي ستر اتحاد واو امریکا دروسې تر ټولو ستر مقابل لوری و خو رښتیا دا وه چې دا ستر اتحاد او داټول متحده ایالات ترې په سختۍ وېرې کې وو یو ته یې هم دمخنیوي چل نه ورتلو او نه یې په مقابل کې دودرېدلو جرأت کولای شو .

روسانو که په نړۍ کې خپل همدا حیثیت ساتلای وای ، او په خپل داخل کې دا صلاحاتو تر ځنګ یې د C.I.A ددسیسو مخنیوي ته توجو کړي وای دا به یې ستر بریالیتوب وای خو دروسانو له بده مرغه چې په افغانستان کې یې دسترو زبرځواکونو دشرمونکوماتو تاریخونه هېروو ، دقبضو مینې لېونې کړي وو ، د همدې لېونۍ مینې اود خورا ډېرې ناسمې پرېکړې په نتیجه کې روسانوپرافغانستان یرغل وکړ .

کله چې روسان پدې پوه شول چې په افغانستان کې يې پر ضد ټول ملت راپاڅېدلی او دروسې ضدنړۍ ته جوته شويده چې په افغانانو کې دروسانو دمقابلې توان شته څکه خو يې مرستی کوي او غواړي چې روسان په همدې افغانستان کې ماتی وخوري نو دا وخت هم د روسانو نجات ښه چانس و، بايد فکريې کړی وای ، دافغانستان تاريخ يې رامخی ته کړی وای ، له ناغېړۍ يې کارنه وای اخستی او پدې نوم له افغانستان نه وتي وای چې افغانان موږ نه غواړي ، پدې سره به له يوې خوا روسان د افغانستان د ورانولو او پکې د يونيم ميليون مظلومو افغانانودوژلو د سترجرم دارتکاب نه خوندي پاتې شوي وای او له بلی خوا به يې خپل حيثيت په نړۍ کې له لاسه نه وای ورکړی خو چې د هوښيارتوب نه يې کار وانه خيست ،حالات يې سم درک نکړل ، په خپلو قوي جنګي وسايلواوډېرو فوځونومغرور شول ، دوسايلوپه لحاظ يې کمزورو افغانانو ته په کمه سترګه وکتل او ورسره يې په جنګ کې ځان ښکېل کړ نو دهمدې کمزورو افغانانو سره په کابولس کلن جنګ کې يې داسی شرمونکې ماتې وخوړه چې له املـه يې شوروي اتحاد بېخي لـه منځه ولاړ، هغـه منځنۍ آسياچې کابو ۷ لسيزې پرې دروسانو قبضه وه هغه نه يواځې دروسانو دقبضې نه ازاده شوه بلکې پکې دامريکا فوځې اډې هم جوړې شوې او شرقی اروپا يې هم نه يواځې داچې دقبضې نه ازاده شوه بلکې دروسې د تهديدولو لپاره پکې ناټو د توغندو ضد دفاعی سيستم هم نصب کړ دا دروسانو لپاره څومره دافسوس نه ډک حالت دي چې ددوئ د ناسمی پاليسۍ په نتيجه کې رامنځته شو؟!

دشوروي اتحاد ددې ماتې نه چې کابويوه لسيزه پس امريکا او نورلوديځ پرافغانستان يرغل کاوه نو دوئ هم دافغانانو تاريخ هېر کړی و اوفکر يې کاوه چې دغريبو افغانانو پر وړاندې چې دنړۍ دهر هېواد دروازه وتړل شي او له يولورې هم ورسره مادي مرستی نه کېږي نو امريکا او ټول لويديځ سره به ديوې ورځې د مقابلې توان هم ونلري .

دخد ايې طاقت او نصرت نه منکرو ، دقربانۍ دمفهوم نه ناخبرو او يواځې پر مادي وسايلو او ماديـاتو يقين لرونکو لويديځوالو د اګومان څکه کاوه چې د دوئ په فکرونو کې داخبره راسخه شوی وه چې د روسانو ماتې دافغانانو سره دنړۍ د مادي او فوځي مرستو په نتيجه کې يقيني شوی وه خو چې کله افغانا نو په ډېرو کمزوروسايلو داشغالګرو مقابله شروع کړه او اشغالګرو هم ومنله چې نه يواځې دا چې مجاهدينو کې زموږسره د مقابلې توان شته بلکې موږ ته يې مشکلات هم پيداکړيدي نو داوخت و چې بايد روسانو که ښکاره نه وای له پټولارو مجاهد ينو سره مرستې کړې وای ، تر څو يې له يوی خوا دامريکا نه خپل انتقام اخستی وا ی او لـه بلې خـوا يې دامريکـا د شرنه دټولې سيمې دخلاصون په افغاني ستر روان مقاومت کې دمرسته کوونکو په لست کې نوم راغلی وای خو دروسانو له بده مرغـه چې دا جرأت يې ونکړ نولږ ترلږه بايد روان جنګ کې يې د ټولې سيمي دغصبولو په اراده دراغلي غاصب دښمن سره خواخوږي نه وای او بېخي بې طرفه پاتی شوي وای خو متاسفانه چې روسان د بې طرفۍ دا توازن نه ساتي او وخت ناوخت داسی اقـدامات او اظهـارات کـوي چې ډېرنامناسب او حيرانونکي وي .

داسمه ده چې امريکا او متحدينو په افغانستان کې شکست خوړلی دی دا شکست که دومره روښانه دی چې ددوئ لپاره تر ې انکارناشونی دی نو همدومره ستر هم دی چې هضمول يې د دوئ لپاره خورا ډېر ګران دي نو څکه غواړي چې دشرم دالوی پنډ په آخر کې بل چاته ورپه اوږه کړي ،پخپله له دې هېواده پښې سپکې کړي بل څوک راميدان ته کړي او شکست بيا ټول رامنځته کړي هېواد تـه منسوب کړي ، په ډېرستر مهارت او هنر C.I.A ددې هدف دلاسته راوړلو لپاره روسيه په خپلو لومو کې راښکېلول غواړي .

غربي رسنۍ شپه او ورځ په دې هڅوکې دي چې طالبان سيمې ته يو ستر خطر وښايې او تل دا وايې چې په ۲۰۱۴م کې دامريکا د وتلو نه پس که طالبان ددې فکر سره يوځای پر کابل واکمن شي چې دوئ پر مختللې امريکـا او ټول لويديځ تـه ماتې ورکړيـده نـو دسيمې هېوادونو لکه منځنی آسيا چين او روسيې ته به دوئ ډېرستر ګواښ وي .

دحيرانتيا وړده چې کومه خبره دتبليغاتې کمپاين برخه وي په غربي رسنيو کې نشر شي هماغه خبره بيا يو لړ روسي مشران تکراروي چې همدا C.I.A غواړي .

پر افغانستان د يرغل کولو نه لادمخه امريکا دمنځنۍ آسيا دهېوادونو نه دمليارډونو ډالر روسې ساخت وسلې اخستی وي ، ددې وسلو نرخ کم و، افغانستان ته نېږدې و چې ورباندې د انتقال مصارف نه راتلل ، افغانان يې په کارولو پوهېدل او ترڅنګ يې امريکا غوښتل چې افغانان د لويديځ دعصري وسلو سره دبلدتيا نه لرې وساتي اوس



د همدې وسلو شتون دروسانو راښکېلولو لپاره د وسیلې په توګه کاروي او روسان ددې وسلو د ترمیم په حیله دلته راولي .

دغربي رسنیو نه دالهام اخستلو په لړ کې روسان داهم وایې چې واک ته د طالبانو په رسېدوبه دمخدره موادو هغه قاچاق نور هم تېز شي کوم چې دافغانستان نه دمنځنۍ آسیا له لارې روسې او بیا تر لودیځ رسېږي ، دې قاچاق په منځنۍ آسیا او روسې کې یوه ستره مافیارامنځته کړیده چې له امله یې د روسې دولت کې ستر اداري فساد رامنځته کړیدی ، ددې ترڅنګ په ۹۰مې لسیزی کې دآمود سیندنه اخواته په تاجکستان ا و ازبکستان کې رامنځته شوی حالت هم روسان رایادوي چې پکې داسلامي حکومت راوستلو غوښتنې رامنځته شوی وې او په ترڅ کې یې ددولتونو ضد وسله وال مقاومتونه هم پیل شوی وو .

دموضوع په ټولو اړخونو که غږېږو نو خبره به ډېره اوږده شي خو په لنډو به دومره ؤوایو چې دا وخت ډېر حساس د ی روسان باید په خپلو اقداماتو او څرګندونو کې ډېر له احتیاط نه کار واخلي او کوښښ وکړي چې ځان د C.I.A ددسیسو نه لری وساتي .

روسانوچې په افغانستان یرغل کړی و په اسلامي نړۍ کې یې پر ضد ډېره زیاته کرکه رامنځته شوی وه خو کله چې د امریکا په مشرۍ کې صلیبي اشغالګرو پر افغانستان اوورپسې په عراق یرغل وکړ او روسان په دې دواړو یرغلونو کې دغربې ښکېلاک داتحاد برخه ونه ګرځیده نو هم یې اقتصاد په نسبي ډول پیاوړی شوا وهم یې پر وړاندې اسلامي نړۍ کې نفرت تقریبا له منځه ولاړ چې دابايد روسان د ځان لپاره ستره لاسته راوړنه وګڼي .

دنړۍ ټول ژمن مسلمانان هغه څوک خپل دښمن ګڼي څوک چې دمسلمانانو پر ضد دښمني اعلانوي ، پرې یرغلونه کوي زېرمې یې غصبوي اوځمکې یې اشغالوي. که روسان افغانستان ته راشي نو دنړۍ مسلمانان به دخپل دې هېر کړي دښمن سره بیاپه دښمنۍ اخته شي دا دښمني به بیا دهغه روسې لپاره ډېره ګرانه وي چې په میلیونونو مسلمانان یې دنفوس برخه ده او دمسلمانانو سره په یوې سیمې کې قرارلري ، چې همدا امریکا غواړي .

امریکا په تلوتلو کې هم دشکست دشرم نه ډک پیټی روسانو ته ورپه اوږه کوي او هم یې مسلمانانو سره په سترې دښمنۍ اړوي .

تر کومه چې دطالبانو دخطرخبره ده نو طالبان خو وړاندې هم پر همدې افغانستان واکمن وو او په ګاونډیووهېوادونو یاله ګاونډیوپرته خو دې څوک کوم کمزوری هېواد وښایې چې دطالبانو له لورې ورته خطره متوجې و؟

د طالبانو پالیسي نه ټوله نړۍ خبره ده چې دخپل هېواد او خپل ملت غم راخستي دي چې خپل هېواد ازاد کړي ، پکې امن او سالمه اداره رامنځته کړي ، خپله خپلواکي یې وساتلای شي د تجاوزګرو یې وژغوري او ترقي ورکړای شي دابه یې ستره لاسته راوړنه وي.

داستره روسیه او زموږ دغربیانو له لورې ورته د خطرونو متوجې کېدل ؟!

که ټوله نړۍ زموږ ددې پالیسۍ نه خبره وي نو روسان ترې ولې نه دي خبراو ولې دچاپه لمسون نامسئولانه حرکت اواظهار کوي ؟

روسان چې په ۹۰یمی لسیزې کې په تاجکستان او ازبکستان کې دمسلحو مقاومتونو خبره ده نو هغه مهال خو نه طالبان وو اونه په افغانستان کې داسې قوي اداره وه چې واک یې دې ټولو سیمو ته غځېدل وای د هېوا د نه بېرون به یې دکوم خو ځښت رهبري څرنګه کړی وای ؟ څرنګه چې ازادي ددې هېوادونوداوسېدونکو غوښتنه وه نو اسلامي نظام یې هم غوښتنه وه داجدا خبره ده چې الهام به یې له افغانانو اخستی و

دمخدره موادو د قاچاق خبره چې روسیه کوي نو په دې خو ټوله نړۍ اعتراف کوي چې دمخدره موادو قاچاق داوسنۍ اداري دراتلوسره ډېر زیات شوی او دوزیرانو په سویه تنان پکې ککړ دي ، نړۍ شاهده ده چې طالبان د کوکنارو په کر سخت بندیز لګولی و او په وروستي کال کې یې د خپل واک لاندې سیمو کې د کوکنارو کر صفر ته راکوز کړی و ، دېته په پام سره به داویل سم وي طالبان به د مخدره موادو قاچاق هم بېخي له منځه یوسي .

نوروسان باید دسیمې نه دستر شر او فساد یانې امریکا او ناټو په تللو زموږ په څېر خو شاله اوسي ، دطالبانو سره خطرونه ونه ترې د طالبانو نه مطمئن وه اوسی دسي .آی .ای په لومو کې راګېرنه شي او نه دلته د بې ا طمینانۍ د نوي حالت د رامنځته کېدولامل شي .

# مقاله څنګه ولیکو؟

(شپونکی)

دلیکوالۍ په اصنافو کې (مقاله) تر ټولو مهم او پراخ صنف دی چې دهغې په قالب کې لیکوالان او د فکر خاوندان ټولنې ته خپل افکار او نظریات وړاندې کوي او دهغې له لارې د ټولنې افراد مطلوبو کارونو، دریځونو او نظریاتو ته متوجه کوي ،او له نامطلوبو کارونو ،دریځونو او نظریاتو پربښودلو ته یې هڅوي .

دمقالې لیکل هم دلیکنې د نورو اصنافو په څیر خپل اصول ، قالب او ځانګړ تیاوې لري، که چیرې د مقالې په لیکلو کې دغه اصول ،قالب او ځانګړ تیاوې مراعات شي نه یوازې داچې دمقالې ، خاطرې، خبر ، راپور، څیړنې، تبصرې او ادبي لیکنې تر منځ به توپیر ونه او ځانګړ تیاوې مراعات شوې وي، بلکه لیکوال به خپل مقصد او مفاهیم هم په واضح او رسا ډول دلوستونکو مخې ته ایښې وي، او هغوئ به یې هغه هدف ته درسیدلو لپاره له ځان سره ملګري کړي وي چې دی یې ور رسول غواړي داچې زمونږه ټولنې ته د ډیر څه دلیکلو ضرورت دی ،او د لیکلو لپاره په زر ګونو موضوعات هم لرو ،نو باید لیکل ور ته پداسې ډول وشي چې ور کې د لیکنې د اصنافو مشخصات او اصول رعایت اود مطلوبو اهدافو لوري ته دهغوئ لار ښوونه شوې وي دادې پدې لیکنه کې د(مقالې) دلیکنې په اړه ددې علم د پوهانو دنظر خلاصه وړاندې کوم:

## دمقالې تعریف :

مقاله هغه متوسطه( نه ډیره اوږده او نه ډیره لنډه) لیکنه ده چې لیکوال ور کې یوه موضوع دخپل تأثر، قناعت، او اعتقاد له لیدلوري په ساده ټکو، پوره وضاحت ،دحقائقو او دلائلو په رڼا کې د منطقي تسلسل په رعایتولو ددې لپاره مطرح کوي چې د ټولنې اصناف او افرادد مطلوبو کارونو، دریځونو، نظریاتو او عقائدو لوري ته متوجه کړي ،او د نامطلوبو کارونو، دریځونو او نظریاتو په خلاف یې له ځان سره ملګري کړي .

په پورتنې تعریف کې لاندې ټکي مشخص شوي دي .

۱- مقاله باید متوسطه وي .

۲- لیکوال یې دخپل رواني ،عقیدوي تړاو ، تأثر او قناعت له امله لیکي .

۳ – الفاظ او جملې یې واضحه، له لغوي پیچلتیا او ادبي صنعتونو لیرې وي .

۴- منځپانګه یې تخیل نه ،بلکه حقائق او دلائل وي .

۵ – دافکارو او حل لارو په مطرح کولو کې یې منطقي (عقلي) تسلسل رعایت شوی وي .

۶ – داسې موضوع ور کې مطرح شوې وي چې د ټولنې داصنافو او افرادو په فکري او عملي ژوند پورې تړاو ولري .

۷- مخاطب ته ور کې دیو څه دکولو او یادیو څه په خلاف د دریدلو توصیه او لارښوونه شوې وي .

## دمقالې دلیکلو پلان

دمقالې دلیکلو پلان درې مرحلې لري چې د مقالې لپاره د موضوع انتخاب ،د مقالې دهدف ټاکل او د مقالې لپاره دعنوان انتخاب دي .

دموضوع انتخاب :

لیکوال باید د لیکنې لپاره داسې موضوع انتخاب کړي چې په هکله یې کافي معلومات ولري .او دا ځکه چې که یې معلومات نیمګړي او یا سطحي وي نه یوازې دا چې مقاله به یې پر لوستونکو خپل تاثیر نه پریباسي بلکه د لیکوال پر شخصیت هم بده اغیزه کوي او لوستونکي یې نورو مقالو او لیکنو ته هم په کم نظر ګوري او نه یې لولي .

د کافي معلوماتو د درلودلو تر څنګ دا هم ډیره ضروري ده چې مقاله دې پداسې موضوع کې وي چې د ټولنې ور ته ضرورت وي، او د لوستونکو لپاره په زړه پورې والی او د دوئ د ژوند په کوم اړخ پورې تړاو ولري.

دښو موضوعاتو د انتخاب لپاره دا ضروري ده چې ليکوال دې دخپلې ټولنې له دين، فرهنګ، تاريخ، اجتماعي قضاياوو، سياسي او عسکري جرياناتو، فکري جهتونو، عنعناتو او رواجونو، او دسيمې دهيوادونو او ولسونو له حالاتو باخبره وي. او ددې کار لپاره دا ډيره ضروري ده چې ليکوال پدې ټولو ډګرونو کې په مطلوبه اندازه مطالعه وکړي، رسنۍ تعقيب کړي، دمقابل لوري له هغو معلوماتو ځان خبر کړي چې هغه يې له خلکو پټ ساتل غواړي، او هم بايد د موضوع په انتخاب کې د زمان عنصر مراعت کړي، ځکه چې ډير داسې موضوعات دي چې که په خپل وخت او زمان کې ونه ليکل شي خپل اهميت له لاسه ور کوي.

دهدف ټاکل :

دمقالې دليکلو لپاره دهدف ټاکل د مقالې د کاميابۍ له عواملو څخه دی. د مقالې لپاره دهدف ټاکل له ليکوال سره پدې کې مرسته کوي چې بايد څه وليکي ؟ او څنګه يې وليکي ؟ يعنې هغه څه ته به په مقاله کې ځای نه ور کوي چې په موضوع پورې تړ او نه لري ،او پداسې ډول به يې نه ليکي چې لوستونکی دهدف لوري ته نه بيايي .

دمقالې هدف د ليکوال په ذهن کې وي ،پدې ډول چې :

آيا ليکوال غواړي چې لوستونکی دې يو بد شخص ، يوه باطله ډله او يا دچايو بد موقف ددې لپاره وپيژني چې دهغه په خلاف ودريږي او مقابله يې وکړي ؟

آيا ليکوال غواړي چې خلک يو داسې موضوع او مسؤوليت ته متوجه کړي چې له خلکو هير شوی دی ؟

او يا دا چې آيا ليکوال غواړي ديوې موضوع په اړه هغه واقعيتونه او حقائق راوسپړي چې يو چا له لوستونکو څخه پټ کړي دي ، او يا يې دعامه ذهنيت د بېلارې کولو په مقصد په اړولي شکل خلکو ته وړاندې کړي دي ،او يا داسې نور .

دمقالې عنوان :

دمقالې لپاره دغوره عنوان ټاکل تر ټولو مهم کار دی ، او دا ځکه چې همدغه عنوان دی چې لوستونکي دمقالې لوستلو ته راجلبوي، کله کله ډير جالب عنوان د کمزوري مطلب لوستلو ته هم لوستونکي راماتوي، او کله د کمزوري او مبهم عنوان له امله يوې ډيرې مهمې موضوع ته هم دلوستونکي پام نه وراوړي .

دعنوان ټاکل له ليکوال سره پدې کې هم مرسته کوي چې دموضوع له چوکاټه ونه وځي .

دښه عنوان صفات :

١ـ عنوان بايد محدود وي .

٢ـ واضح او دمقالې آيينه وي، يعنې دموضوع تصوير ور کې ښکاره شي.

٣ـ عنوان بايد پدې دلالت وکړي چې مقاله ديوې موضوع په اړه ده . داسې نه وي چې ډيرې موضوع ګانې په يوه عنوان کې کتار شوې وي .

## دمقالې برخې

مقاله عموماً په درې برخو ويشل شوې وي چې مقدمه ، متن او خاتمه وي

مقدمه :

د مقالې مقدمه بايد پداسې يوې جملې پيل شوې وي چې موضوع ته د لوستونکي پام وروا‌ړوي .

دمقدمې په جمله يا جملو کې بايددموضوع هدف بيا ن شوی وي .

اختصار ور کې مراعات شي ، او د کيفيت او کميت په لحاظ له موضوع سره تناسب ولري .

دا چې اوس په دنيا کې دمعلوماتو د عموميت او ډيرښت زمانه ده او د ډيرو موضوعاتو په اړه خلک له مخکې يو څه معلومات لري نو ځکه اوس اوږدې مقدمې دخلکو نه خوښيږي، بلکه غواړي چې په لنډو دموضوع متن ته ور داخل شي او دمطلب ټکي ور کې وګوري. نو په کار ده چې مقدمه لنډه ، توجه راجلبوونکي او په زړه پورې وي .

متن :

متن د مقالې زړه دی ، ليکوال دمقالې په متن کې موضوع شرح کوي، تحليلوي يې ، او دلوستونکي د پوهولو په مقصد دوضاحت لپاره مثالونه وړاندې کوي.

په متن کې بايد لاندې ټکي په پام کې ونيول شي :

١-د پيښو تاريخي او د افکارو منطقي تسلسل رعايت شي،پدې معنی چې ليکوال چې کله پيښې بيانوي نو ګډې وډې يې بيان نه کړي ، بلکه دهغو د پيښيدلو تاريخي او زماني تسلسل ته يې پام وي، او همدارنګه چې کله افکار او نظريات بيانوي نو بايد پداسې ډول يې بيان کړي چې د اسبابو ، علتونو، عواملو او نتائجو ترمنځ منطقي او معقول تسلسل رعايت شوی وي .

۲ – تعبیرونه باید دقیق وي، او معلومات په پوره وضاحت بیان شوي وي

۳ – د اشخاصو، ځایونو، اداراتو او ارقامو په لیکلو کې ډیر دقت وشي، هسې نه چې دیوه څه پر ځای بل څه ولیکل شي ، او یا د یو چا قول بل چاته منسوب شي.

۴ – د بې مناسبته او بې مورده الفاظو او ډیرو مرادفاتو له لیکلو دې ډډه وشي، او همدارنګه دې په علمي، سیاسي، او عقلي لیکنو کې له لفاظۍ او د ادبي صنعتونو له کارولو ځان وساتي .

۵ – که په مقاله کې ځینې افکار جزئیات لري نو یکار ده چې جزئیاتو ته شمیره ور کړل شي ،او په ښه ډول یو له بله جلا کړل شي، تر څو لوستونکي ته په راتله ډول دموضوع ټول جزئیات په مخکې کیښودل شي خاتمه :

دمقالې خاتمه هم د مقالې په هیکل کې مهم ځای لري چې باید لاندې ټکي ور کې رعایت شي :

۱ – خاتمه باید لنډه وي .

۲ – خاتمه باید دلیکوال د مقصد لنډیز وي .

۳ – په خاتمه کې باید هغه نتیجه راویستل شوي وي چې لیکوال یې لوستونکي ته وړاندې کول غواړي .

۴ – په خاتمه کې باید واضح ، قوي او پریکنده الفاظ وکارول شي ،او دا ځکه چې دخاتمې الفاظ به هغه وروستي ټکي وي چې د لوستونکي تر سترګو تیریږي او دهغه په ذهن کې پاتې کیږي .

## دمقالې ځینې ډولونه

مقاله دوظیفي او مقصد په اعتبار بیلا بیل ډولونه لري چې مهم یې په لاندې ډول دي :

۱ـ سرمقاله

سرمقاله یا افتتاحیه هغه مقاله ده چې د پیښو او قضایاوو په اړه دیوې نشریې د پالیسۍ رسمي نظربیانوي .

د سرمقالې په لیکلو کې باید لاندې ټکو ته پام وشي :

۱ – سرمقاله به د تحریر رئیس اویاد تحریر دهئیت یوه داسې غړی لیکي چې هم دخپلې نشریې پالیسي ښه ورمعلومه وي ، هم د لیکل کیدونکې مقالې د موضوع حیثیت او ابعاد ورمعلوم وي، او هم دصلاحیت په لحاظ پداسې یو موقف کې وي چې پر سرمقاله د مترتب کیدونکو آثارو او نتائجو ځواب وویلی شي .

۲ – د سرمقالې په لیکلو کې دې محافظه کارۍ اوپوره احتیاط وشي ،او د الفاظو او کلماتو په انتخاب کې دې له پوره دقت څخه کار واخیستل شي.

۳ – سرمقاله باید د تازه موضوعاتو او روانو جریانونو په اړه ولیکل شي ، او دلوستونکو دقانع کولو په مقصد دې د ارقامو په یادولو او د قوي دلائلو په وړاندې کولو تر کیز وشي .

۴ – دسرمقالې په لیکلو کې دې هڅه وشي چې د ټولنې عمومي ذهنیت مخاطب کړای شي .

۵ – په سرمقاله کوښښ کیږي چې په هغو مهمو سیاسي، اقتصادي، اخلاقي او ټولنیزو موضوعاتو لیکنه وشي چې په ټول هیواد او هیوادوالو پورې اړه لري .

سرمقاله هم درې برخې لري چې مقدمه ، متن، او خاتمه دي ، خو د مقالې له نورو ډولونو سره یې فرق پدې کې دی چې سرمقاله عموماً لنډه وي . ،خو دضرورت په وخت کې یې اوږدول هم بد نه ګڼل کیږي

.

## ۲ـ وصفي مقاله

وصفي مقاله هغه مقاله ده چې لیکوال په هغې کې د کوم شخص ځای او یا کومې پیښې وصف بیانوي ، په وصفي مقاله کې دلائل ، شواهد ،عقلي او فلسفیانه استدلالونه او مناقشې نه وي ، بلکه په هغې کې دیو چا یا یو څه کیفیت ، حالت، ځانګړ تیاوې او موقعیت په الفاظو کې تصویریږي.

په وصفي مقاله کې باید لیکوال لاندې ټکو ته پام وکړي :

۱ – لیکوال باید په وصفي مقاله کې د شخص ، ځای، پیښې او جریان په هکله معلومات پداسې ډول بیان کړي چې لوستونکی داسې احساس وکړي لکه په خپلو سترګو ئې چې دا هر څه لیدلي وي .

۲ – لیکوال دې کوښښ وکړي چې دموصوف شخص ، ځای، او یا بیانیدونکې پیښې او جریان ټول اړخونه په متناسب ډول په خپله مقاله کې راونغاړي ، تر څو لوستونکي ته نیمګړي تصویر نه بلکه تصویر له خپلو ټولو اړخونو سره په مخ کې کښیږدي، مثلاً که لیکوال په یوه کلي کې د واده په مراسمو کې پر خلکو د امریکایانو د بمبارد یوه پیښه بیانوي نو باید لاندې پوښتنې یې په مقاله کې په طبیعي ډول ځواب شوې وي :

- بمبار د شوی کلی چیر ته ؤ؟ لوي ؤ که وړوکی؟ دخلکو ژوند بڼه يې کوم ډول وه؟
- دچا په کور کې واده ؤ؟ د واده خاوند څوک او څه ډول انسان ؤ؟ او څنګه رالوي شوی ؤ ؟
- دواده تر تیبات څنګه نیول شوي ول؟ څوک ور ته راټول شوي ول؟ راټول شوو خلکو څه څه کول ؟ څه وخت ؤ ؟
- د طیارو د راڅر ګندیدلو په وخت کې خلکو څه وکړل؟ آیا چا ګومان کاوه چې واده به بمبار د شي؟ بمبار دڅنګه شروع شو؟ بمونه چیر ته ولګیدل؟ د بمونو له لګیدلو سره سمدستي څه پيښ شول؟ دخلکو حالت او حواس څه ول؟ د اور او دوړو تر کبنیناستلو وروسته خلک څنګه راټول شول؟ څه پيښ شوي ؤ؟ څوک وژل شوي ول؟ څوک زخميان ول؟ په څه حالت او کیفیت کې لویدلي ول ؟ چا څه ډول چیغې او زګیروي کول؟ کور ته څه ور پيښ شوي ؤ؟
- خلکو له زخمیانو سره څه وکړل؟ شهیدان يې څنګه خوندي کړل؟ پدې حالت کې له خلکو سره د طیارو دبیا راتلو او دنور څه دپیښیدلو ویره وه او که نه وه؟
- زخمیان چا څنګه چیر ته یوړل؟ شهیدان چا څنګه چیر ته ښخ کړل؟
- خلکو دحکومت او امریکا په هکله څه ویل؟ او څه ډول احساسات يې درلودل؟
- راډیو ګانو او میډیا ددې پيښې په اړه څه وویل؟ حکومت او امریکا دا پيښه څنګه توجیه کړه؟
- د کور ، واده ، شاه ، ناوې ، خوشحالیو او رنګینیو تصویر په څه تبدیل شو؟

دا خو یوازې د یوې پيښې مثال ؤ چې که چیرې لیکوال ددې پيښې په اړه د پوښتنو ځوابونه په یو ښه ډول تصویر کړي نو لوستونکي به داسې احساس کړي چې یا خو ددې پيښې شاهد ؤ ، او یا يې هم د هغې دقیقه ویډیو لیدلې ده .

## ۳ـ تحلیلي مقاله

تحلیلي مقاله هغه مقاله ده چې لیکوال په هغې کې هغه پيښې او قضیې تحلیلوي او عمق ته يې ځان ورسوي چې د ټولنې عمومي ذهنیتیې مشغول کړي وي .

لیکوال په تحلیلي مقاله کې پيښې او واقعیتونه په تفصیل سره راسپړي، دهغو او هغو ته د ورته نورو پيښو او واقعیتونو ترمنځ دروابطو، مشابهتونو او مماثلتونو د پیدا کولو کوښښ کوي، او بیا له هغو څخه دهغو نظریاتو او نتائجو استنباط کوي چې غواړي دلوستونکي مخې ته يې کښیږدي .

په تحلیلي مقاله کې باید لیکوال لاندې ټکو ته پام وکړي :

۱- تحلیلي مقاله د شواهدو ، دلائلو، منطقي او عقلي استدلال پر بنسټ ولاړه وي ، نه پر تخیل او عواطفو.

۲ - په تحلیلي مقاله کې لیکوال موضوع په پوره آزادۍ ، زړور تیا، او علمیت مطرح کوي، په تحلیلي مقاله کې د نشرېې د پالیسۍ رعایتول ضرور ندي .

۳ - دا به ډیره ښه وي چې تحلیلي مقاله په یو ځل په مکمل ډول نشر شي ، او په قسطونو ونه ویشل شي، ځکه چې په قسطونو ویشل يې مطلوبه نتیجه دلوستونکي ذهن ته نشي رسولی .

تحلیلي مقاله هم درې برخې لري چې مقدمه، متن او خاتمه ده .

په مقدمه کې باید پیښه ، واقعیت او یا قضیه په مختصر ډول یاده شي .

په متن کې د یادې شوې موضوع تاریخچه، پس منظر ، ابعاد، جزئیات، له نورو پيښو سره دهغې ارتباط او ددې پيښې دلالتونه وڅیړل شي.

او په خاتمه کې يې نتیجه د کومې مشورې ، طرحې، وړاندیز او یا دریغ نیونې په شکل کې راوویستل شي. نو ویلي شو چې په تحلیلي مقاله کې خاتمه تر ټولو اهمه برخه وي.

تحلیلي مقالې عموماً دموجودو پيښو او روانو جریانونو اودهغو قضایاؤ په اړه چې د ټولنې عمومي ذهن يې مشغول کړي وي اوهم دهغو سیاستونو او تګلارو په اړه لیکل کیږي چې د ټولنې پر سیاسي اواجتماعي ژوند حاکمې وي .

## ۴ـ کالم

کالم هغه مختصره مقاله ده چې یوه جریده دهغې لپاره دخپلې یوې صفې یوه برخه (ستون) په منظم ډول د کوم لوي ، مشهور ، پاخه او د ټولنې په حال او نبض د باخبره لیکوال په اختیار کې ور کړې وي ،او هغه هره ورځ او یا په هره شماره کې دهغې له لارې خپل افکار ،

نظریات، خاطرې ، طرحې او دپیښنو او قضایاؤ په اړه خپلې انګیرنې او برداشتونه له خپل ولس سره شریکوي .

کالم په عمومي ډول د جریدې په یو ثابت ځای کې وي، او تل له هماغه یوه عمومي عنوان لاندې خپریږي ، که څه هم چې موضوعات یې بیلا بیل وي .

کالم د لیکوال د شخصي احساساتو، نأملاتو، او تأثیراتو زیږنده وي، دنشریې په پالیسۍ پورې اړه نه لري ، او لیکوال په هغه کې په ډیر بې تکلفه ډول لوستونکو ته خپل افکار داسې وړاندې کوي لکه یو ډیر صمیمي دوست چې خپل بل صمیمي دوست ته د زړه حال لیکي .

په کالم کې لیکوال هڅه کوي چې خپل افکار په ساده الفاظو، داستفهام او تعجب د تورو په کارولو تقریبا دطنز په روحیه ،او خپل مقصد زیاتره د مثالونو او لنډکیو کیسو په ترڅ کې بیان کړي .

په کالم کې چې څومره د طنز ، کیسې ، متلونو، او ادبي تعبیرونو خواږه ډیر وي په هماغه اندازه لیکوال خپل مقصد او افکار لوستونکي ته په آسانه او مؤثر ډول رسولی شي .

کالم هم درې برخې لري چې مقدمه، متن ، او خاتمه ده . مقدمه دیوه مختصر تمهید په شکل کې وي ، په متن کې د کالم لیکوال خپل اصلي مقصد بیانوي، او په خاتمه کې خپل نصیحت ، لارښوونه، او مشوره دلوستونکي مخې ته ږدي .

دښه کالم لیکلو لپاره لاندې ټکو ته توجه په کار ده :

۱ـ کالم لیکونکي باید دټولنې له روزمره احوالو، پیښنو، ستونزو، پرمختګونو، اخلاقي او رواني وضعیت څخه ځان باخبره وساتي، مطالعه وکړي ، راډیو واوري ، انټرنټ او دمعلوماتو نور مراجع وګوري ، خلک وغږوي، دفکر او نظر له خاوندانو سره ناستې ولري، او موضوع په دقت سره انتخاب کړي .

۲ـ د کالم لپاره عمومي عنوان باید ښه توجه جلبوونکی عنوان وي .

۳ـ د کالم لیکونکی باید د کالم لیکلو ته ملتزم وي او ناغه ور کې ونه کړي ، ځکه چې دناغې په صورت کې خپل لوستونکي له لاسه ور کوي

۴ ـ په لیکنه کې داسې تعبیرونه و کاروي چې دټولنې تقریبا ټول خلک ورباندې پوهیږي .

۵ـ په کالم کې موضوع په ډیره ژور تیا او تخصصي او تحلیلي ډول مطرح نه کړي ، ځکه چې په هغه صورت کې بیا له کالم څخه تحقیق او یا تحلیلي مقاله جوړیږي چې هر څوک یې نه لولي .

## څو عمومي خبرې

په لیکوالۍ کې څو عمومي او ضروري خبرې دي چې رعایتول یې دهر لیکوال لپاره په کار دي چې ځینې یې په لاندې ډول دي :

۱ ـ لیکوال باید په هر ډول لیکنه کې د پوچو، سپکو او بې مروته ژبې له کارولو ډډه وکړي ، ځکه چې دغه ډول ژبه د لیکوال شخصیت او دهغه د افکارو او نظریاتو مقبولیت ته زیان رسوي، او د لوستونکو باور ورباندې له منځه وړي .

۲ ـ لیکوال باید د دلائلو ، شواهدو، اقتباسونو، او د اقوالو په راوړلو کې منصف او امین واوسي ، ځکه چې لیکوال د ټولنې داجتماعي استاذ او لارښود حیثیت لري، که یو ځل یې خلک په یو مضمون یا کتاب کې بې انصافي او د امانت او صداقت نشتوالي ووینې ، نورو مضامینو او کتابونو ته یې هم خلک دبې اعتمادۍ په نظر ګوري .

۳ ـ لیکوال باید لیک نښې ( علامات ترقیم ) په خپلو خپلو ځایونو کې ولګوي تر څو یې په جملو او عبارتونو کې دوصل او فصل مشکل دمفاهیمو په فهم کې اختلال رامنځته نه کړي .

۴ ـ فقرې ( پراګرافونه)باید ډیر اوږده نه وي ، په لیکنه کې د پراګرافونو د بیلتون نشتوالي د لوستونکي دستومانۍ سبب ګرځي .

۵ ـ ددې لپاره چې په ژبه کې خالصیت راشي ژبه څوسوه کاله شاته بیول ندي په کار ،بلکه ښه خبره داده چې خلکو ته په آشنا، عام فهمو کلماتواوتعبیرونو خبره ولیکل شي ،خیر دی که هغه عام فهم او پیژندل شوي لفظ په اصل کې د کومې بلې ژبې وي .خولهځانه جوړوشوو او ډیرو زړو او له کاره لویدلو الفاظو استعمال مضمون بې خونده کوي او دلوستونکي پام له معنی څخه الفاظو ته ور اړوي . خو ددې خبرې معنی دانده چې ژبه دې دبلې ژبې په الفاظو داسې مسخ شي لکه دپیښنور (انګریزۍ ځپلو) دولتي مامورینو چې له (پښتو) څخه (انګلستو) جوړه کړې ده.

دا دمقالې په اړه څو خبرې وې چې دخپل ولس دځوانو لیکوالو په خدمت کې مې پدې هیله وړاندې کړې چې دخپل مسلمان ولس په ژوند پورې اړوند په زر ګونوموضوعګانې په ښه او معیاري شکل ولیکي .

عبدالرؤف حکمت

امریکا څه کم دوولس کاله وړاندې په افغانستان برید وکړ، دوی په پیل کې فکر کاوو چې دغه هیواد به ډیر زر تر خپل ګورت لاندې راولي او د خپلې خوښې نظام او پوځي اډې به په کې جوړې کړي، د همدې فکر په اساس کله چې مجاهدین د امریکایي یرغل د پیل په مهال له جبهه یي مقاومت څخه د چریکي جنګ په خوا د تغیر وضعیت په حال کې وو، بې تجربې امریکایانو په ډیره بیړه خپله بریا یقیني وبلله، او د دفاع وزیر ډونالډ رمسفیلډ په خوله یې د افغانستان د جګړې چې دوی د ( تلپاتې ازادۍ عملیات ) نوم ورکړی وو، پای اعلان کړ.

په لومړیو دوو دریو کلونو کې امریکایان او نړیوال په پوره توګه باوري وو چې د افغانستان کیسه یوطرفه شوه، نوځکه یې د عراق شخړه پیل کړه، د امهال نړیوالو مطبوعاتو هم خپله مطبوعاتي ترمینالوژي داسې عیاره کړې وه، چې له افغانستان څخه یې د مقاومت دیو مخیز ختمېدو انځور ورکاوو، دوی په مقاومت لګیا مجاهدین ( طالب پاتې شوني ) بلل، او افغانان یې مکررا ( له جګړې ستړي اولس ) باله، هغه مهال د مجاهدینو روان مخفي مقاومت هم امریکا تر زغم لوړ باله نو ځکه یې د پخلاینې شورا په نوم یوه جرګه جوړه کړه او له طالبانو یې د روان خالخال خوځښت د پای ته رسولو غوښتنه وکړه، خو د امریکایانو دې غوښتنې ته هغه مهال د پکتیکا یوه مجاهد شاعر شهید نورالله درویش داسې معنادار ځواب ویلی وو.

مه کوه د بس د کیسې، چاوېل چې بس کیږي جنګ
ما خو لا شروع نه دی، اوس به شروع کیږي جنګ

## د رښتیني جنګ شروع

سره له دې چې د امریکایانو په خلاف د افغانانو جهاد د یرغل له لومړۍ ورځې څخه تقریبا په درست افغانستان کې روان وو، خو په لومړیو څو کلونو کې دغه جهادي عملیات تر ډیره حده مخفي، د کمیت له اړخه لږ او د اغیز

له اړخه کمزوري وو ، خو څرنګه چې افغانان دخپلو عاداتو له مخې همیشه پردي یرغلګر په سړې سینه له پښو غورځوي ، دامریکا په خلاف هم دافغانانو جهادي خوځښت کرار خو پله پسې او تدریجي پرمخ روان وو ، ۲۰۰۵ م او ۲۰۰۶ م هغه کلونه چې دافغانستان په زیاتره برخو کې علني جهادي اوښتون راغی ، چې ورپسې په زیاتره جنوبي ، جنوب ختیځو ، مرکزي ، لویدیځو او یوشمیر شمالي ولایاتو کې اطرافي سیمې دمجاهدینو لاسته ولویدې.

ددې جهادي اوښتون په پایله کې دیرغلګرو او داخلي ملګرو سلطه یې ترښاري سیمو او ځینو لویو لارو پورې محدوده شوه ، د جګړې وضعیت له بنسټه تغیر شو ، امریکایان او ملګري یې په خپلو اډو کې محصور شول او له یرغلیز وضعیت څخه دفاعي وضعیت ته په شا شول ، جهادي عملیاتو فوق العاده زور واخیست تردې چې امریکایان په دې وویریدل چې که په خپله تګلاره له سره غور ونه کړي شاید داطرافي سیمو غوندې ښاري او مرکزي سیمې هم دمجاهدینو لاس ته ولویږي ، په دې مرحله کې دمجاهدینو په خلاف دامریکایانو پوځي عملیات چې په مختلفو نومونو یې اعلانول یو په بل پسې ناکام شول ، ځکه امریکایانو او ملګرو یې دشمیر له اړخه دومره عسکر نه درلودل ، چې له ښارونو بهر قرارګاوې جوړې کړي ، او په عملیاتي سیمو کې پاته شي ، نوځکه به له عملیاتو وروسته امریکایان بیرته خپلو مراکزو ته ستنیدل او په عملیاتي سیمو کې به مقاومت له نوي روحیې سره راپورته کیده.

## د سرتیرو د ډیربښت ستراتیژي

بارک اوباما په ۲۰۰۹ م کال کې داسې مهال دامریکا واکمني ترلاسه کړه ، چې په افغانستان کې دامریکایانو وضعیت تروروستۍ کچې بد حالت ته رسیدلی وو ، اوباما دافغانستان په ماموریت کې دبدلون ( چینج ) په شعار دغه انتخابات ګټلي وو نوځکه یې دې مسئلې ته داولویت حق ورکړ ، اوباما ته امریکایي پوځي ستراتیژي جوړوونکو مشوره ورکړه چې دعراق تجربې ته په پام سره که چیرې په دې هیواد کې دسرتیرو شمیر زیات شي ، کیدای شي ، افغاني مقاومت له منځه یووړل شي ، دغو پوځي ستراتیژیستانو داوباما دستراتیژۍ په نامه دافغانستان دجنګ لپاره نوې تګلاره وټاکله ، چې له مخې یې دافغانستان دجنګ امریکایي مشر ډیویډ مکرنن عزل او په ځای یې دستینلي مک کرسټل په نامه نوی څلورستوریز جنرال وټاکل شو ،ددې نوې جنګي ستراتیژۍ بنیادي توکی افغانستان ته دلسګونوزروتازه دموامریکایي سرتیرو لیږل وو ، ترڅو په کلیوالو سیمو کې له طالبانو سره له جنګ وروسته پوستې جوړې کړي دغه ستراتیژي چې لویدیزو مطبوعاتو ورته سخت تبلیغات وکړل ، بارک اوباما د ۲۰۰۹ م په پای کې اعلان کړه.

خو دامریکایانو ددې نوي جنګي تګلارې داعلان په مهال دافغانستان اسلامي امارت په خپل غبرګون کې ویلي وو چې دسرتیرو د ډیربښت ستراتیژي به یوازې دامریکایي عسکرو تلفات زیات کړي ، هغه اټکل چې وروسته کټ مټ رښتیا وخوت.

له ۲۰۰۹ م میلادي څخه د ۲۰۱۱ م میلادي ترپایه پورې هغه کلونه وو چې امریکایانو په کې دسرتیرو د ډیربښت ستراتیژي پلې کوله ، په دې کلونو کې دامریکایي عسکرو تلفات او جنګي مصارف دبل هروخت په نسبت زیات وو ، دومره زیات چې امریکایي عسکرو داوږدې زماني لپاره نه شوای برداشت کولای ، داوباما دستراتیژۍ دتطبیق په وروستیو کلونو کې په افغانستان کې نوی امریکایي مشر جنرال ډیویډ پیټراییس دې نتیجې ته ورسید چې د سرتیرو د ډیربښت ستراتیژي له غوځ شکست سره مخامخ ده ، او دوی نه شي کولای په دا ډول فرسایشي جنګ کې د اوږدې مودې لپاره تر سل زره زیات سرتیري وجنګوي ، دغه مهال امریکایانو ته په افغانستان کې کټ مټ داسې جنجال ورپیښ وو لکه په ۱۹۷۲ م کې چې په

ویتنام کې ورپېښ وو د ۲۰۱۱ م کال په منځنیو میاشتو کې دفرانسې مشهورې ورځپاڼې (نوول آبزرور) په خپل یوه تحلیل کې ولیکل (اوباما دافغانستان په جبه زاره کې کټ مټ داسې نښتی ، لکه ریچارډنیکسن چې په ویتنام کې نښتی وو ، او دنوموړي لپاره دهماغې ویتنامي لارې څخه پرته بله هیڅ لاره نشته ، ترڅو له دې ډنډه پښې وباسي )

همدا بن بست او دسرتیرو ډېرښت دستراتیژۍ شکست ددې لامل شو چې امریکایانو دافغانستان لپاره په نوې تګلاره غور پیل کړ چې وروسته تحلیل ګرانو ( دجنګ افغاني کولو ستراتیژي ) نوم ورکړ.

## دجنګ افغاني کولو ستراتیژي

دا اصطلاح امریکایانو لومړی ځل د ویتنام په جنګ کې مستعمله کړه ، په ویتنام کې چې دکلونو جنګ په ترځ کې دامریکایي پوځ بیلابیلې ستراتیژۍ یو په بل پسې له شکست سره مخامخ شوې ، په پای کې دې نتیجې ته ورسیدل چې امریکایي پوځ نه شي کولای په دې هیواد کې بریا ته ورسیږي ، خو مخامخ شکست هم باید ونه مني ، ددې لپاره چې د ویت کنګ مقاومت کوونکو په وړاندې امریکایي پوځ مخامخ شکست ونه وي خوړلی ، امریکایانو د ۱۹۷۳ م کال له پیل سره سم د جنګ دویتنامي کولو په ستراتیژۍ کار پیل کړ ، دوی په جنوبي ویتنام کې خپل اجیران او محلي کرایي عسکر تررووستۍ کچې اعمال او اکمال کړل ، ترڅو یې له ویت کنګ مقاومت کوونکو سره مخامخ کړي او په دې توګه دخپل پوځ دایستلو فرصت ترلاسه کړي.

په افغانستان کې امریکایانو چې له وړاندې یې دافغاني مرتزقه عسکرو په روزنه کارپیل کړی وو ، د ۲۰۱۱ م له پیل وروسته یې دې پروګرام ته توجه څو برابره زیاته کړه ، دغه راز یې په کلیوالو سیمو کې دمحلي پولیسو( اربکیانو ) په نوم دسلوالو دګمارلو کار هم پیل کړ ، ترڅو دامریکایانو له وتلو وروسته اشغال شوي سیمې وساتي.

په تیرو څوکلونو کې امریکایانو تقریبا ۳ لکه افغاني قواوې اردو ، پولیس او اربکیان اماده کړي دي ، ترڅو دامریکایانو تر تیښتې وروسته نیابتا ددوی جګړه پرمخ بوزي.

په دې لړ کې امریکایان له ډیرو هغو سیمو وتلي هم دي چې دمنځنۍ کچې جهادي مقاومت په کې موجود وو ، او نیت لري په نږدې راتلونکي کې له یوشمیر هغو سیمو هم ووزي ، چې جهادي خوځښت په کې قوي دی.

دامریکایانو نوي جنګي قومندان جنرال جوزف ډانفورډ څو ورځې وړاندې وویل چې راتلونکی کال به ددوي دافغاني ملګرو دازموینې کال وي ، دجنګ افغاني کولو ستراتیژي چې امریکایان یې دمسؤلیت ورسپارلو بهیر بولي ، تراوسه یې جریان نه دی تکمیل شوی ، او یوازې په لږو سیمو کې عملي شوي ده ، مګر هغه پیښې چې ددې ستراتیژۍ دپوښښ سیمو کې لیدل کیږي داسې معلومیږي چې دتیرو په شان دامریکایانو دغه ستراتیژي هم له شکست مخ کیدونکي ده، اوکومه نتیجه به ورنکړي.

## دجنګ افغاني کولو دستراتیژۍ شکست

بادغیس چې دافغانستان په شمالي لویدیځه څنډه کې پروت دی ، په شمالي افغانستان کې ترټولو مشهوره جهادي سیمه بلل کیږي ، بهرني عسکر په ۲۰۰۲ م کال کې ددې ولایت په مرکز قلعه نو کې میشت شول ، په ۲۰۰۷م کال کې په دې ولایت کې جهادي پاڅون په ټول قوت سره پیل شو ، تردې چې پراخې سیمې دمجاهدینو تر واک لاندې راغلې ، امریکایان اړ شول چې په ۲۰۱۰ م کال کې دې ولایت ته زرګونو تازه دمه عسکر ولیږي ، ترڅو په اطرافي سیمو کې میشت شي ، په دې لړ کې امریکایانو دبادغیس په مرکز سربیره په بالامرغاب ، قادس ، مقر ، دره بم او غورماچ ولسوالیو کې ګڼې محکمې قرارګاوې جوړې کړې ، خو څرنګه چې امریکایان په دې عملیاتي سیمو کې پرلپسې له بریدونو سره مخامخ وو بالاخره یې په سیمه کې

داربکیانو په استخدام پیل وکړ او زرګونو محلي خلکو ته یې وسلې وویشلې ترڅو دامریکایانو تر شاتګ وروسته دغه سیمې وساتي ، امریکایانو د ۲۰۱۲ م په پیل کې له بادغیس څخه شاتګ پیل کړ ، خو ورسره په ټولو تخلیه شویو سیمو کې داربکیانو او داخلي عسکرو د تسلیمۍ بهیر هم پیل شو ، چې په لویو ډلو کې تردې چې شمیر یې سلګونو رسیده له خپلو ټولو امکاناتو سره له مجاهدینو سره یوځای کیدل ، تردې چې د ۲۰۱۲ م کال ترپایه د بادغیس حالات بیرته داسې شول لکه په ۲۰۰۹ م کال کې چې وو ، یعنې امریکایان یوازې په مرکز کې شته او د مرکز او ولسوالیو ټولې اطرافي سیمې د مجاهدینو په ولکه کې دي.

دا یوازې بادغیس نه دی بلکې فاریاب ، فراه ، غور ، سرپل ، لوګر ، وردګ ، پکتیا او ګڼې نورې هغه سیمې چې امریکایانو ترې خپل یوشمیر عسکر ایستلي دي ، دغه ډول پیښې په کې تکرار شوي دي ، چې دامریکایانو تروتلو وروسته سیمې بیرته د طالبانو لاسته ورغلي وي .

امریکایان په دې ستراتیژۍ کې په افغاني اجیرو ځواکونو حساب کوي ، چې ددوی له تیښتې وروسته به جګړه وغځوي ، خو تراوسه چې لیدل شوي ، ددوی زیاتره یاخو د جګړې اراده نه لري ، بلکې دامریکایانو له تیښتې وروسته تسلیمیږي او د مجاهدینو دعوت او ارشاد کمیسیون له لارې ورته د ژوند دخوندیتوب تضمین ورکول کیږي ، لکه په تیرو څو اونیو کې چې په ننګرهار ،فاریاب ، لغمان ، پکتیکا ، فراه ، هلمند ، روزګان او نورو ډیروسیمو کې سلګونه اربکیان او محلي پولیس له وسلو سره له مجاهدینو سره یوځای شول ، او کوم یې چې په جګړه ټینګار کوي هغوی دا توانمندي نه لري چې دامریکایانو لخوا ورسپارل شوی کار سرته ورسوي.

په تیرو څو میاشتو کې په بدخشان ، فاریاب ، جوزجان ، غزني ، هلمند ، کندز او نورو ډیرو سیمو کې دداخلي عسکرو درنو تلفاتو ، د سیمو ازادۍ او دمجاهدینو فتوحاتو وښوده ، چې دامریکایانو دنیابتي افغان جنګیالیو جګړه ایزه وړتیا خورا کمزورې ده ، او په هیڅ صورت نه شي کولای ، دامریکایانو لخوا ورسپارل شوي سیمې وساتي.

وروستیو څیړنو ښودلې چې داجیرې اردو یوه لویه فیصدي عسکر د پوځ له لیکو د تیښتې په حال کې دي ، له بلې خوا دکابل په سیاسي واکمنۍ کې دفساد پراخ شتون هم دبهرنیو تمویلوونکو غوندې دجنګیدونکو عسکرو مورال وژلی دی ، هغوی له دې سوال سره مخامخ دي چې جګړه دچالپاره کوي ، امریکایان چې څه موده وړاندې یې اربکیان یوه کامیابه پروژه بلله ، په دې وروستیو کې یې داپروګرام هم له سخت زوال سره مخامخ دی ، د ظلم ، وحشت ، بداخلاقۍ ، غلا او نورو رسواییو له امله اربکیان له ولسي نفرت او انتقام سره مخ شوي دي ، څه موده وړاندې په پکتیا کې یوه مشهور غله چې امریکایانو دنیمې پکتیا داربکیانو ټیکه ورکړې وه ، له ټولو پیسو سره تښتیدلی دی ، له دې څخه معلومیږي ، چې دغه کسان هم دامریکا دملګرتیا خیال نلري بلکې یوازې ترې پیسې شکوي ، دطالبانو لخوا په غزني کې داربکیانو تکراري قتل عام او دفاریاب د پراخو سیمو له تصفیې څخه ښکاره شوه ، چې دغه خلک چې امریکایي پوځیان یې خپل ځای ناستي بولي ، دجګړې تاب نلري.

دا ټول ددې دلائل دي ، چې دنیابتي جګړې له لارې دامریکایانو دکامیابۍ تصور او داشغال داوږدلو فکر په بشپړه توګه غلط دی ، او لرې نه ده چې په ۱۹۷۵م کال کې دامریکا دنیابتي ویتنامي جنګیالو دفضیحت بار شکست غوندې دامریکایانو افغاني ځایناستي هم له عبرتناک شکست سره مخامخ شي.

# دبروکسل ناستې په حقایقو سترګې پټې کړې !

خبیر احمدم

دبلجیم هیواد په پلازمینه ( بروکسل ) کې داپریل په ۲۲ دناټو اوهغوهیوادونو چې افغانستان ته یې پوځیان لیږلي دبهرنیو چاروو وزیرانو اواستاځو په ګډون غونډه ترسره شوه ، دنوموړې ناستې موخه که څه هم دکابل اداري لپاره دمالي لګښتونو څیړل اوپوره کول وه اوپه دې هم بحث کیده چې څنګه له افغانستان څخه دبهرنیو عسکرو وتلو اوپه ساده ټکو دپښو سپکولو لپاره زمینه سازي وکړي

خودناټو عمومي منشي ( اندرس فوګ ) ددې په خاطر چې دناټو اوامریکا په روان پوځي اوسیاسي شکست پرده واچوي نو په حقایقو یې سترګې پټې کړې اوپه هغو چټیاتو یې سخوندووا هه چې له تیرو ۱۲ کلونو راهیسي یې ناټو ، امریکا اوغرب دخپلو مسلسلو ماتو اوشکستونو پرمهال وهي ! !؟

دناټو په ورستي ناسته کې د ناټو عمومي منشي دخپلو پرسوده خبرو په دوام کې وویل: پاکستان باید وسله وال پرې نه ږدي چې له خاورې یې ګته واخلي، هلته په کې پناه ځای پیدا کړي او له هغه ځایه پر افغانستان بریدونه وکړي.

داندرس فوګ دغه ډول نظر اواوتي بوتي کومه نوي خبره نده ، بلکې دافغانستان داشغال له ړومبی ورځې تراوسه پورې چې کله دامریکا اوناټو قوتونه په افغانستان کې له دروند اوپریکنده پوځي ګوزارسره مخ شوي اومجاهدینو ورته حیرانوکي مالي اوځاني زیان اړولی نودهغودپټیدواوتوجیه لپاره یې له دغه ډول تورونواستفاده کړې اویوبې بنیاده اوبې ربطه عنصریې پکې راګډکړی دي چې هغه ځیني ګاونډي هیوادونه دي.

په دې خبره کې شک نشته چې ګاونډي هیوادونه په خاص ډول پاکستان اوایران به په افغانستان کې دخپلو ځاني ګټو اومصالحود خوندي کولو لپاره څه هلې ځلې کوي ، خوداخبره هیڅ عقل اومنطق نه مني چې دغه ګاونډي هیوادونه دې دامریکا ، ناټو اوغربي نړی له دومره پراخ حضور اوشیطاني جال سره سره له مجاهدینو سره پوځي اومالي مرسته وکړي اویادې هغوی ته په خپل هیوادکې خوندي کمپونه اودروزنې مرکزونه په اختیارکې ورکړي.

ګاونډيو هيوادونو اوپه خاص ډول پاکستان دهغوطالب مشرانو په نيولو اواسيرولو چې صرف دتداوي اويادنوروبشري اړتياوودپوره کولوپاره هغه هيوادته تللي صرفه نده کړي بلکې نيولي يې دي ، درنې شکنجې يې ورکړي اوان يوشميريې امريکايانو اوکابل رژيم ته يې په لاس ورکړي.

امريکا، ناټو اوغربيان په دې ټکي ښه پوهيږي چې کوم مقاومت ددوی په وړاندې روان دي هغه سل په سلو کې ولسي رنګ اوجذبه لري اودولس په قوت اومرستو ځرخيږي اوپه دې خبره کې هم ابهام نشته چې دخارجيانوپه وړاندې جنګ اومزاحمت افغان ولس مقدس جهاداوسپيځلي مبارزه بولي.

که چيرې دخارجيانوپه وړاندې روان مقاومت ولسي صبغه اوروحيه نه درلودی نوبياولې دافغانستان په ګوډ ګوډ کې جګړه روانه ده ، پکارخوداوه چې تنهاپه هغوولايتونو کې خارجيان اودهغوی تاليختي تارومارکيدلای چې هغه له ګاونډي هيواد سره پوله اوګډسرحدلري چې له امله يې مجاهدينو دورځې حمله کړي وای اودشپې له پلوه ګاونډي هيوادته اوړيدلي وای .

اوس خو دهيواددجنوب په ځای په شمال اوجنوب غرب حوزه اومرکزي ولايتونو کې هم دجهادميدان توداوښه ګرم روان دي ، دناټو عمومي منشي دغو حقايقو ته څه ځواب لري ؟

ددې ترڅنګ هغه ابله ورځ چې دلوګرولايت په ازرې ولسوالی کې دناټو پرمختللې چورلکه سره له مجهزوپوځي افسرانو اوعسکرودمجاهدينو له لورې ولکه اوونيول شول هغه خو کوم سرحدي ولايت اوله پاکستان سره په پوله پرته سيمه هم نه وه ، ولې دناټو اوامريکاتکنالوجی په دې بريالی نشوه چې ۱۱تنه بهرني اتباع پيدااودمجاهدينو له لاسو يې ازادکړي .

معلوميږي چې دولس اوبيا داسلامي عقيدې په روح مالامالې پرګنې هيڅکله ډالراوشيطاني تکنالوجی نشي تابع اوتسخيرولی.

مونږ دبروکسل دناستې متدصديانواو چارواکوته وايو: ستاسو ددغو پوچو تبليغاتو اوبې ځايه تورونو وخت تيرشوی ، نړی اوافغان ولس پوهيږي چې اصلي خبره اوجريان څه دي اوولې دوی په ډاګه داخبره نکوي چې هغوی نور دافغان ولس په وړاندې ماته خوړلې اوټولې ستراتيژيانې يې شنډې اوخنثی شوي دي.

ښه اوپرځای قضاوت اوتصميم دادی چې هرڅومره ژرکيدلای شي له افغانستان څخه دخارجي قواوو وتلو ته زمينه سازي وشي اولدې زيات دافغان مظلوم ولس دکړولو ، شکنجه کولو اووژلو له تګلارې ، دبروکسل دناستې ګډونوال لاس په سرشي اوافغانان پريږدې چې دهغوی له چتر اوفرمايش پرته يوازاد ، مستقل او اسلامي نظام اوهيوادولري ، کنه روانه تپل شوې جګړه به دجګړې عاملين اوتمويلونکي رابښکيلوي اوترهغوبه يې نه پريږدې ترڅوبې چې دپخواني شوروي اتحادپه سرنوشت نه وي اخته کړي .( انشاالله

# دپنجوايي دفاجعې دوسيه څنګه شوه؟

سيد سعيد

داسي هيوادوال به كم وي چي دپنجوايي د
تېر(۲۰۱۲)ز،كال دمارچ ديوولسمي له فاجعې څخه
خبرنه وي ،هغه بوږنونكې پېښه چي دپنجوايي
ولسوالى په زنګاوات سيمه كي دشپې له
خوامريكايي پوځيانو اوولس تنه ولسي وګړي
دښځواوكوچنيانوپه ګډون بې پلمې شهيدان كړل
اوبيايې په اوروسوځول .

دعيني شاهدانوپه وينا چي په دغه شپه يې
د۱۲–۱ بجې پوري دالوتكوږغونه اوريدل خوګومان
يې كاوه چي كومي بلي خواته به ځي ، ددوى په
وينا ځكه دډېربكو(چنوك اواپاچي هليكوپرو)اوازونه
يې نه دي اوريدلي ،نوبيغمه شول چي پلي عسكربه
سيمي ته نه وي راغلي .خوشېبه وروسته يې پرله
پسې دډزواوازونه واوريدل ،ورپسې يې
دښځواوكوچنيانوډارونكي چغې اوناري واوريدې
.ترښه درنګ وروسته چي دډزواوچيغواوازونه خپ
شول له كورونوڅخه راووتل مخ دډزواوچيغوپر
خواورغلل ،فضاء دوينو،غوښواوباردوګنګسونكى
بوى نيولې ده. كه ګوري چي يوګړى مخكي امريكايي
عسكروپرڅوكورونويرغل كړى اوپه همدې
كورونوكي يې په جلا- جلاخونوكي په خوب بيده
ماشومان، ښځي اوبوډاګان له يوه مخه ويشتلي چي
زياتره شهيدان شوي دي ،امريكايانو دشهيدانو
جسدونه يوې كوټې ته راټول كړي اوبيايې سوځولي
هم دي .

ديادي شوي پيښي په اړه امريكايي
چارا كواوكرزي خفګان ښكاره كړ اودايې ديوليوني
پوځي عمل وباله ،خودعيني شاهدانوپه وينا په دغه
جنايت كي يوپوځي لتاړنه دى ،بلكي ډيرعسكرچي
په دووبيلوبيلوډلومشتمل ووپكي ښكېل دي .دوى
وويل چي :«يوعسكرڅنګه كولاى شي چي ديوې
شپې په يوه برخه كي په دووكليوكي پرله پسې په
څوكورونوكي خلك ووژني اوبيايې رايوځاى
اووسوځوي ؟. داڅنګه ليونى دى چي ځان نه وژني
،خپل ملګري نه وژني ، خوافغانان وژني ؟!،په توره
شپه په كومه كندهاووياله كي نه لوېږي ، لاره نه
ځني وركيږي اوبيرته سيده ځي خپل مركزته سهي

سلامت ځان رسوي !! ». دعیني شاهدانو دوینا په اسا
س چې : وهمدغه کلي ته امریکایي عسکرپه
څوموټروکې ورغلي دي اوبیایې په دغه وحشت لاس
پوري کړی دی .

پورته ذکرشوي خبري دپیښې شاهدانواود
شهیدانو وارثانومخامخ کرزي اوتیم ته یې واورولې
، کرزي هم ومنل چې : «هو! داعمل یو کس نشي کولای
»، یرغلګرواود کابل اداري په تېره کرزي له ولس سره
ټینګه ژمنه وکړه چې قاتل پوځي (رابرټ بېلز) ته به
سزاورکوي اوپه افغانستان کې به محاکمه کیږي



. که څه هم دولسي خلګوپه وینا دغي پیښي عاملین
۱۵ - ۲۰ تنه پوځیان وو، خودنیوا ګګروله خواهغه
یوتورن شوی عسکر( رابرټ بېلز) هم دپلټني په پلمه
له افغانستان څخه وایستل شو.

رابرټ بېلز دامریکا په یوه پوځي محکمه کې
ظاهرادرویشت تنوپه مړګ ژوبله تورن شو، ترپیښې
یوه میاشت وروسته یوه ډله امریکایان زنګاوات ته
دشواهدوراټولولوپه نوم ولاړل ، خوکوم راپورېې
وړاندي نه کړ.

دپیښې دوه مهم عیني شاهدان یوپه بل پسې
ووژل شول ، اغالالاچي دیادي شوي پیښي یوفعال
شاهدؤ، دجون پر۲۳مه دکندهار- بولدک په لویه
لارپه یوه مرموزه ترافیکي پیښه کې ووژل شو. دغه
رازیوبل تن (حبیب الله) چې دخپل پلارحاجي
محمدنعیم دوژلوعیني شاهدؤ، دسپټمبرپر۲۵مه
سهارچې له کورڅخه خپل باغ ته روان ؤامریکایي
پوځیانووواژه .

کله چې د۲۰۱۲ز، نومبر کې رابرټ بېلز محکمې ته
حاضر کړشو، له کندهاره دویډیو کنفرانس له لاري
دقربانیانویوولسوتنوقریبانوشاهدي پرې ورکړه
، خودبېلزمحاکمه څومیاشتي نوره هم وځنډیده
، دوی درابرټ بېلزداعدام غوښتنه وکړه
، مګرمعلومه نده چې دغه تورن پوځي به کله
اوڅنګه محاکمه کړشي

مخکې به دورته پیښوڅخه وروسته
دیرغلګروځواکونواوکابل اداري
ویندویانوادعاکوله چې پرمجاهدینو دځوابي
بریدپه ترځ کې ملکي خلګوته هم زیان اوښتی
دی اوپه دې توربه یې چې مجاهدین ولسي
وګړي دسپرپه توګه کاروي، دخپلې ګناه پیټې
دمجاهدینواوړوته غورځاوه. ولي دیادي شوي
پیښي دعیني شاهدانوله خولې چې په دغه ځای کې
نه طالبان موجودووا ونه هم کوم کس
پریرغلګروحمله یاډزې کړې دي ، نوداځل یې بیاقاتل
یوازي یو پوځي اوهغه هم لیونی ونوماوه .

که فرض کړوچې همداجنایت یوه پوځي کړی
اوهغه هم ددوی په وینا لیونی ؤ، نولیونیان په پوځ
کې شاملول اوبیادجګړې کرښې ته بېول څنګه
توجیه کوي ؟.

داندېښني وړپوښتنه دا ده چې یرغلګرځواکونه
په هغوسیموکې چې هلته ددوی قرارګاوي وي

اونسبتادولایت اوولسوالۍ مراکزوته نژدې وي همدا ډول وحشت ترسره کوي ،نوپه هغوسیموکي چي دمجاهدینوترکنترول لاندي دي اودوی یوازي دشپینوعملیاتوپه مټ هماغه سیموته دورتګ مجال ترلاسه کوي دمظلوموهیوادوالوسره به څه ډول چلند کوي ؟،ځکه چي وهماغوسیموته نه دپلټني پلاوی ورتلای شي اونه هم دبشردحقونومدافعین اوژورنالیستان دومره زحمت کوي چي سیمي ته ولاړشي اودمظلوموافغانانوحالت په خپلوسترګو ووینی اوبیايې ږغ ترنړیوالوورسوي .

نوربایدڅوک دغربیانوپه تېره دامریکایانود بشردوستۍ په دعواواودقانون اواوصولودرعایت په شعارونو ونه غولیږي ،ددوی دتاریخي وحشتونود شنني پرته چي ارامه نړۍ یې داورپه بټۍ بدله کړې ده ،همدااوس اوس چي ددنیاپه کوموځایونوکي ویني بهیږي په مستقیم اوغیرمستقیم ډول همداد بشردحقونوعلمبرداران پکي ښکېل دي . عملاپه ډیربربریت اوتکبرپه افغانستان ،عراق ،فلسطین ،صومالیا،مالي ،یمن او..... کي پرمظلومانودحشت اوظلم میچني چلوي ،هیڅ مقررات نه پیژني هغه قوانین چي نوریې په نه عملي کولومجرمین ګڼي ،خپله یې یوپه بل پسې ترپښولاندي کوي . دوی اصلاهغه انسان ډوله درنده ګان دي چي دمظلوموولسونوویني څښي ،هډوکي یې شپېلي اوپرکوپړیوېې اسمان څکي ودانۍ جوړي کړي دي .

که راشودبحث اصلي موضوع ته دپنجوایې دفاجعې له دوسیې څخه دامریکایې چارواکوظلم ،غولونه اودرغلي ښه جوته شوه ، چي تریوکال وروسته یې هم له خپله اړخه نومول شوي اوتائیدشوي معلوم قاتل ته کومه سزاورنه کړه .یوواریې له شلوقاتلانوڅخه یوازي یوتن په ګوته کړ،بیایې همدایو(رابرټ بېلز) په لیونتوب تورن کړاواوس چي لیونی په سدراغلی هم یې محاکمه له یوې ورځي بلي ته ځنډوي . که رابرټ بېلزته شل کاله اویاعمري بنداعلان شي ،کوم دنړبچی به بیاپلټنه کوي چي نوموړی رښتیاهم په زندان کي دی اوکه په نړیواله کچه دامریکاله پراخواوتیت



وپرک پوځي اډوڅخه په کومه یوه کي یې په دننده بوخت دی . دنړۍ په حاکم وضعیت کي دظالم اومظلوم ،کمزوري اوزورورترمنځ عادلانه محاکمه محاله ده ،ځکه مدعي علیه هم وکیل دی ،هم قاضي اوهم سپاهي .مدعي ته یوه ،خو،خورامؤثره لارخلاصه ده ،هغه دیرغلګروپرضدفي سبیل الله جهاددی ،دهمدې لاري کیدلاشي چي له یوې خوادجهادفریضه له غاړې واوړي ،هیوادازادشي اوداسلامي نظام نفاذ ته زمینه مساعده شي اوله بلي خواخپل اودنوروظلومانوزړونوپرې یخ اوغچ ترې واخیستل شي .




لوی شوم ولې دمور په ذهن کې اوس هم وړوکی یم ، په ژیرې کې مې سپین ولګیدل لاهم دمور په قضاوت کې کمکی یم ، هغه تنها هغه څوک ده چې اوښکې ، شیدې اووینې یې رانه فداکړې ، ټولو خلکوهیرکړم اوټوله دنیاراته متغیره اوبدله وګرځیده خوپرته له مورڅخه !

موري : کله به چې په سفر تللم څومره اوښکې دې راپسي تويي کړې !اوڅومره خوبونه دې په ځان حرام کړل او په هغه مهال به چې زه نه وم څومره به ناارامه اوغمجنه وې !

موري : کله به چې زه له سفر څخه راغلم په قدمونواووجودکې به دې ناڅاپه حرکت اوځواني وغوړیده اوله زياتې خوشالی نه به دې له سترګوڅخه اوښکې جارې شوې اوچې کله به له کوره تلم نو په مړاوي اوغمجن زړه اواوازبه دې راسره په مخه کوله.

موري : په څومره سختيواوکړاوونودې زماحمل ګرځاوه ، په څومره دردونو اومشقتونودې دنیاته راوړم اوپه څومره نوازش ، لوبولو اوچپولودې زه په غیږکې نیولم .

موري : هیڅکله نه ویده کیدې ترڅوبه چې زما سترګوته دخوب پرکالي نه وه راغلي ، ترهغوبه دې دراحت احساس نه کاوه چې زماپه سترګواومخ کې به دې خوښي نه وه لیدلې ، که به ماخندل تابه هم پرته له کوم دلیله خندل ، که به زه غمګین وم تابه پرته له کوم سببه ژړل ، دجرم له ارتکاب مخکې به دې زما اشتباه منله اوله عذرویلو وړاندې به دې زه معاف کولم !

موري : هرچابه که زما تعریف کاوه هغه دې تصدیقاوه اګرکه زه به یې درته داخلاقو ستورى اود ثوارلسمي سپوژمی په څیریادکړم،خوکه به چازمابددرته ويل هغه به دې دروغجن باله که څه هم هغه کس به په عدالت اوصداقت کې نوماندى وو اوهرچابه امين ګاڼه !

موري : ستاددې دومره مهربانيو اونيکيوپه مقابل کې څه ځواب ووايم ، په داسې حال کې چې خپله مهربانه ګيډه دې زما دحمل لپاره جاى ګرځولې وه، خپلې شيدې دې زماغذاګرځولې وي ، زما دخوشبختى په موخه دې دسرتوروينښتان سپين کړل ، زما لپاره دې خپل قوي وجود کمزورى کړ اوملادې زما داسايش لپاره کړوپه کړه

.

موري : زه اوس څه ډول ستادهغواوښکو درناوى اوبديل وړاندې کړم چې کله به دې زما په ليدو اوخوښى لپاره تويولې اوکله بدې زما په غم اودردکې بهولې ؟

موري : کله دې چې زه نوراني مخ ته ګورم نودهغه لوى کتاب دزرينوصفحوشغلې اوانګارراته بريښي چې زما درنجونو اودردونو لوى لوى داستانونه پکې پټ اوله ورايه ځليږي اوتنها زما دسختيو دتحمل روايتونه اوصحنې پکې ليدل کيږي.

موري : زما ټول وجودستاپه وړاندې دشرمندګي اوکمترى احساس کوي ، په هغه مهال چې زه تاپه زړبوډي اوتکليف کې وينم اوزه په ځوانى اوتندرستى کې

يم اوته امساتكوي او دځمكې خواته له يوې نه بلې ورځې ته ميلان پيداكوي

موري :هغه وخت چې ټولودوستانوماته شاكړه ، ته يواځې هغه څوك وې چې له ماسره وفاداره پاتې شوي ، هغه مهال چې نورواسره خيانت وكړاوصميمي يارانوراسره دفريب اودوكي معامله وكړه ؛ خوداتنهاته وې چې په مهربان اولورونكي زړه دې راسره لطف اوبرخوردلاره ، له تسلى ډكې خبرې به دې راته كولې اودعاوې به دې راته كولې.

موري : دخلكو په منځ كې دلوى والي احساس كوم ، ددوستانو اوهمځولوپه كتاركې دمرتبې سوچ وهم ؛ ولې ستا په مخ اوفكر كې زه اوس هم وړوكې اوماشوم يم !

نوګراني اومهرباني موري !

همدالحظه نورستاپه مقابل كې دعجز اوشرمندګى سرټيټه وم ، ټول لقبونه اومرتبې له ځان څخه څنډم ، مال اودبدبه بې مانابولم ،

ځكه چې ته زما مشفقه اولورونكې موريې اوزه دې ځوى يم ، ته زما دعقيدت اومنزلت مرجع اومنبع يې اوزه دې فرمانبردارخدمتګاربچى يم ، ته زمامدسه اوزه دې شاګرديم ، ته ونه يې اوزه دې ميوه يم !!!

اوداچې ته زما لپاره دحقيقي مينې اومهربانيوسرچينه اوزما لپاره هرڅه يې ، نولطفاًماته اوس اجازه وكړه چې لاسونه اوپښې دې چپ كړم اودپښواوقدمونوخاورې دې په ستركوومونښم !

ربِّ اغفر لوالدی وارحمهما كما ربّیانی صغیراً.

ای مهربانه ربه ! زما مورااوپلار په خپل مغفرت اومرحمت كې ونغاړه ، لكه څنګه يې چې زه په وړوكيتوب كې وپاللم. ( عبيد تنوير )

# افزایش اسلام آوردن کودکان در انگلستان

**تحقیقات و بررسی های انگلیسی نشان می دهد که در طول ۶ سال گذشته، روز به روز به تعداد مسلمانان این کشور افزوده می شود.**

**به گزارش سنی پرس به نقل از المدینه نیوز، مسلمانان انگلیسی در طول ۶ سال گذشته حدود ۳۷ درصد افزایش یافته اند و تعداد مساجد آنان به ۱۵۰۰ مسجد رسیده است.**

**محققان مرکز تحقیقات انگلیسی « گیتسون» با تاکید بر افزایش روی آوردن به اسلام در بریتانیا، بیان کردند که بسیاری از زندانیان انگلیسی به اسلام روی آورده و مدارس نیز شاهد اسلام آوردن دانش آموزان بوده اند.**

**« الکساندرا» دختر «لارن بوث» خواهر همسر نخست وزیر سابق انگلستان « تونی بلر» در ماه رمضان گذشته به اسلام ایمان آورد. وی با اشاره به این که همیشه با مادرش نماز می خواند افزود: « اسلام آرامش خاصی به مادرم داد»**

**وی همچنین در ادامه با تاکید بر این که عشق به خدا و تقوای الهی را آموختم و شهادتین آرامش و اعتماد ویژه ای به من داد، اضافه کرد: بعد از پوشیدن حجاب معلمان و مدیران به من احترام گذاشتند و برای دانش آموزان مسلمان نماز خانه اختصاص دادند.**

**« جرج رندیف» ۱۴ ساله نیز با بیان این که هیچ گاه به تنش های موجود در مورد اسلام توجهی نکرده بود خاطر نشان کرد « عشق به مناره ها» باعث ارتباط وسیع وی با اسلام شد و این ارتباط با سفر به کشورهای اسلامی افزایش یافت.**

**وی با دانش آموزان مسلمان مشورت کرده و بعد از به دست آوردن اطلاعاتی در مورد اسلام از روی اینترنت، به خانواده اش اعلام کرد که قصد دارد که اسلام را به عنوان دین بپذیرد که البته با اعتراض آنان روبه رو نشد.**

**« شیلا رود» ۱۵ ساله در جنوب لندن گفت: اسلام عشق حقیقی است. وی که از یک سال قبل اسلام را پذیرفته بود بر این عقیده است که روزی اسلام تمام انگلستان را فرا خواهد گرفت.**

**کارشناسان بر این عقیده اند که کاهش تردد به کلیساها در انگلستان، قوانین طاقت فرسای یهودیت و مسیحیت و قواعد اخلاقی که در جامعه انگلیسی وجود دارد باعث ایجاد کمبودهای روحی وسیعی برای ساکنان این کشور شده است که اسلام به راحتی می تواند آن ها را پر نماید.**



# دجمهوري رياست دماڼي مداري

ليکونکی:حنان ميرزی

په با زارونو اوبازاري ميلو کي به مداريان هرچا ليدلي کتلی وي چي په سومره چالاکی خلک په زان را ټولوي ، بيا کله خلکوته د مار توکری د خلطي څخه راوبا سي مار نه ښکاره کوي بلکي دطاقت اوخطرناک شکل اوصورت په باب يي تيزبيان کوي ، بيا کله نولی دتوکری څخه راوباسي دهغه کمالات اوخصوصيات وښيی ،اوبيا سه تيل راوباسی بيا سه ګولی راوباسي اوداسی نور.......

خلک په انتظار اوشوق کي پريدی په دې وخت کي ورته خپله دکانداری شروع کړي اوخپل سه دخرڅلاو توکي خلکو ته راوباسي نوخلک يي زرزر واخلي چي مداري دمار اونورو کمالاتو اوعجائبو ښکاره کولوته اوزګار شي نو بيا دمارد توکری سر خلاص کړي مارتري لږ راوباسي خلکو ته يي په خپل لاس کي نيولی وښيی په زمکه يي نه خوشي کوي بيرته توکری کي واچوي سر پري بند کړي په دې وخت کي خپل نور سه ددوکانداری سامان ورته ښکاره کړي

کله په آخر کي بيا خلکو ته دا هم ووايي چي شه اوزګار يی زی ولاړشی خپل کاروکړی بس قصه ختمه کړي، سامان ټول اوجيب ډک کړي پخپله مخه ولاړ شی .

داسي بازاري مداريان به هرچاليدلي کتلي وي خو په رسمي ارګان اوچوکاټ کي به چا لاتراوسه مداری نه وه ليد لی چي دادی درسمي مداری توب ابتکار هم ښاغلي ! کرزي ترلاسه کړ، د کرزي درياست کلونه هم د ميلي دمداري پشان وه کله چپن واغوندي ، کله قرقول ، کله وژاړي او کله وخاندي کله په افغانانو دړکه وکړي کله بيا په امريکايانو[ البته : پس له دې چي له هغو اجازه واخلي] او پدی دوخت کي دی خپله دوکانداري کوي پښتنو ته زان په پشتو خپله وی اوفارسی زبانو ته زان په فارسی او چاته په چپن او چاته په قرقول او چاته په سه اوچاته په سه چي داټولي اداګاني اومداري توبونه يي دخپلي سوداخرڅولو اودکانداری کولو لپاره دی

خو پښتانه هم بايد پوه شی چي کرزی دپښتنو ندي او فارسی وانان دي هم پوه شي چي دفارسی وانانو ندي ، همدارنګه ازبک هزاره ، ترکمن اونورقومونه دي هم پوه شی چي دهغوی هم ندی اوحتی ټول افغانان دي پدې پوه شی چي دسره افغان ندی

،بلکي صرف دامريکا يا نو دي او بس

چي له کله کرزی ته دولسمشری چوکی اومانی ورډالی شوي ده نو هغه داسی عجائب اوغرائب نړيوالوته عرضه کړه چي دوستان او دشمنان ، خواص اوعوام ټول ورته حيران پاتي دي ،اوکه محترم لوستوال نه خپه کيږی دابه ووايم : چي پخوا مود شاه شجاع اوببرک کارمل نو مونه اوريدلی وه خو کرزی هغه دچا په خبره ددتيرو وختو د ټولو ګوډاګيانو رکاډ مات کړچي دادی دولس ديارلس کاله يي شه په هسکه غړانګه بغير دهيڅ قسمه شرم اوعاره دخپلو بادارنو خدمت کول لا سه چي دخدمت پوره حق يی اداکړاودادی اوس يي سترګي پټی کړي اوپه جرأت يی وويل چي د کابل ددفاع په وزارت حمله دامريکا خادمانو کړيده ،آخر داپه کوم مخ په کومه خوله په کومو سترګو!

ايا په افغانستان کي سه چي په نړی کي به هم امريکاله تاڅخه بل کوم غټ اووفادار مخلص اوحلقه بګوش غلام پيداکړي وي ؟ چي نه

دغلامی ټول کارونه خو ته په ډيرصداقت او مهارت سره کولای شی مطلب داچي دامريکايانو ستا په شا ن مخلص او وفادار خادم وی دبل چا خدمت ته سه ضرورت نلري ددوی دهرقسم خدمت لپاره ته بس يي؛ افغانان اوس سه ناڅه بيدار شوي دی ستا په دې مداريتوب اوس نه تيراوځي .

# اربکیان ( ملیشه ) دتاریخ په آینه کې

لیکنه: حافظ محمد خراساني

اربکی چې جمع يې اربکيان ده، د لغت له مخې د سيمه ايز قومي لښکر يا ډلګۍ غړي ته ويل کيږي، په بله ژبه ترينه په سيمه ايزي مليشې هم تعبير کيږي، هغه کسان هم د اربکيانو په رديف کې راځي، چې له کوم مقصد څخه پرته د بل چا لپاره په پيسو جنګيږي، يا يې کوم دولتي نظام د عوامو د ځپلو لپاره په غير قانوني توګه را منځته کړي. اربکيان يا سيمه ايزه مليشه د تاريخ په اوږدو کې په ګڼو مهالونو کې را منځته کړې شوې ده. د اربکيانو د را منځته کيدو اړتيا يو ځواک ته په هغه وخت کې پيدا کيږي، چې ځواک ته يې خطر متوجه شي.

په ګڼو مهالونو کې يو يرغلګر يا بل ظالم حکومت چې د خپلو نيولو شوو سيمو يا د خپل رعيت په ايل کولو يا ارام کولو کې پاتې راشي، د خپل سلطنت اکثرو وګړو ته خپل حق نه ورکوي، حکومتي واک کمزوری شي، رعيت د هغوی په مقابل کې خپل غبرګون ښکاره کړي، په دولتي چارواکو او مسئولينو باندي بريدونه پيل کړي، د خپل حق د غوښتنې آواز پورته کړي، نو په دې وخت کې حکومت يا يرغلګر د خپل ځان او واک د دفاع په موخه د قومونو ځينو لچک او شريرو خلکو ته د مرستې لاس ور اوږد کړي، هغوی اکمال کړي، پيسې او هر قسم وسله يې په خدمت کې کيږدي، داسې ډول کسان تر هغه مهال پوري له قانون څخه پورته او بالا وګرځوي، تر څو د دوی موخې نه وي تر لاسه شوي، خو کله چې د دوی موخې تر لاسه شي، بيا ورته د ځاروي په ستر ګه هم نه ګوري، په اول قدم کې اکمالات پرې کم کړي، په دوهم قدم کې قانون ورته متوجه او بيا يې په تدريج سره ختم کړي. تاريخ ثابته کړې چې په ځينو وختونو کې دا ډول مليشې د هيواد د اصلي وګړو سربېره هغه نظام ته هم په ستره بيه تمامې شوي، چا چې دا ډول مليشې را منځته کړې وي، تردې چې په ځينو مهالونو کې بيا همدا نظام په خپل لاس د را منځته کړې شويو مليشو له لاسه ختم شوی دی.

**سوډاني اربکيان:**

سلطان صلاح الدين ايوبي چې کله په نظامې ډګر کې را څرګند شو، نو په هغه وخت کې د خلافت مقام ډېر زيات ضفيعه شوی وو، د وخت خليفه (العاضد ) د خپلو عوامو د ايل کولو لپاره سوډاني اربکيان را منځته کړي وو، چې مشر يې د ناجي په نوم و، مصر يې د هغوی منګولو ته سپارلی وو، د مصر اصلي استوګن د هغوی د ظلم او وحشت له لاسه تر پوزې را رسيدلي وو، کله چې سلطان صلاح الدين د مصر والي مقرر شو، نو د سوډانيانو ايل کول ورته په ستر زيان تمام شوو، تر دې چې د هغه په خلاف همدې سوډاني مليشو د هغه وخت له صليبي يرغلګرو سره هم لاس يو کړ، په پای کې يې د وخت له خليفه څخه هم بغاوت وکړ، خو سلطان ايوبي د دوی ټول چلونه په ډېر حکمت له خاورو سره خاورې کړل، مصريان يې د دوی له ناورين څخه وژغورل، مصر يې تر خپل کرت لاندې راوست.

## د غزانو طايفې اربکيان:

د غزانو طايفه يوه ترکی نژاده طايفه وه، د دوی شمير تقريباً ځلوېښتو زرو کورونو ته رسيدو او دغه طايفه پوند او مالداران وو دوی اصلاً د ماوراء النهر او د ترکستان په اخرينو برخو کې د ختلان او جغانيان په ولايت کې اوسيدل (ختلان او چغانيان دوې سيمې دي دا دواړه سيمې د سيند شمالي خوا ته پرتې دي ختلان د تخارستان په مقابل کې او چغانيان دبلخ په مقابل کې واقع دي له دغو منطقو څخه د غزانو طايفه د افغانستان سيمو تخارستان او بلخ ته راغله( حدود العالم ۲۷ مخ).

کله چې د ترکانو يوې بلې قرغز نومې طايفې چې پر غزانو زوروره وه، پر غزانو باندې يرغل وکړ، ډير يې زيانمن کړل، له خپل وطن څخه يې وشړل. نو غزان له خپل وطن څخه افغانستان ته راغلل او د طخارستان په سيمو کې ميشت شول.

بيا د بلخ حاکم چې د سلطان سنجر له خوا هلته حاکم ؤ، غزان د بلخ سيمو ته دعوت او راوستل او د هغو رمو او ګډو ته يې د بلخ په څمکو او سمسورو ورشوګانو کې ځای ورکړ، سلطان سنجر سلجوقي له هغوی څخه د کال (۲۳) زره پسونه د محصول په توګه تر لاسه کول، او د ضرورت په مهال به يې د دښمن په خلاف ترينه ګټه اخسته.

د سلطان سنجر دا اقدام چې د ملي ګټو پر خلاف وو، نو د ناوړو پايلو په نتيجه کې د عام افغانانو د سخت زيانمن کيدو سربيره د سلطان سنجر حکومت هم پکښې له منځه ولاړ. غزان په څه خبره له سطان سره وران شول، نو سلطان لومړی د بلخ حاکم ته امر وکړ، چې غزان وترټي د بلخ حاکم چې پر غزانو باندې لښکر وروووست، غزانو هم مقابله ورسره شروع کړه چې په نتيجه کې يې د بلخ دحاکم لښکر مات او د بلخ حاکم او د هغه زوی ووژل شوو.

د دې پيښې له اوريدلو سره سم سلطان سنجر د غزانو د ترټنې او زمولولو دپاره لښکري تياري کړې او د غزانو پر طايفه باندې يې يرغل وروړ (۵۴۸ هـ) غزان هم چې زيات نفوس او پوره زور يې تر لاسه کړی وو، په ډيره دلاوری د سلطان سنجر د لښکرو مقابلې ته راووتل، او له زياتو خونړيو جګړو څخه وروسته د سلطان لښکرو ماتې وکړه او ډير لښکريان او لوی لوی افسران يې په دغه جګړه کې ووژل شول. سلطان سنجر پخپله مغلوب بلخ ته ولاړ، له هغه ځايه مروې ته ولاړ غزان بلخ ته پسې ورغلل بلخ يې لوټ او تاراج کړ. له هغه ځايه مروې ته پسې ورغلل سلطان سنجر يې اسير کړ، ښار او خزانې يې چور کړې او زيات خلک يې ووژل له هغه ځايه غزان نيشاپور ته پسې ولاړل د نيشاپور ښار يې هم چور او تاراج کړ. بيا طوس ته پسې ولاړل د طوس ښار يې هم چور او لوټ کړ.

لنډه دا چې د غزانو طايفې د خراسان ډير ښارونه چور او لوټ کړل او خراسان د دوی د وحشت او فساد په اثر خراب او تباه شو او زيات علماء، فضلاء او لوی لوی اشخاص د دوی له لاسه محو شول.

پخپله سلطان سنجر څلور کاله د غزانو په لاس کې بندي ؤ خو په (۵۵۱هـ) کې په کوم ترتيب وتښتيد خپل مرکز مروې ته يې ځان ورساوه هلته له ډيره غمه او غصې څخه ناروغ او مړ شو (۵۵۲هـ).

همدا غزان وو، چې د سلطان سنجر سلجوقي ډير قوي حکومت يې ونړاوه او د خراسان اکثرې سيمې يې دوه ځلې چور او چپاو کړې او د سلطان سنجر له مړينې څخه وروسته غزانو له سلطان محمود سره چې د سلطان سنجر پر ځای ناست ؤ سختې جګړې وکړې مروه يې ورڅخه ونيوله بيا سرخس ته پسې ولاړل هلته يې هم له ده سره جګړې وکړې او اولس زره عساکر يې د سلطان محمود ووژل د سرخس او طوس ښارونه يې چور کړل بيرته مروې ته راغلل او د دوی د فساد او طغيان لمن نوره هم اوږده شوه، د غور او غرجستان پر سيمو يې هم تعرضونه وکړل، دخلکو مالونه به يې لوټول. او په همدغو وختونو کې د غور پاچا سلطان سيف الدين د دوی دمدافعې د پاره لښکرې وايستلې.

وروسته بيا غزانو بيرته خپل پخوانی استوګن ځای بلخ ته راغلل، او د خطر له پاچا سره هم وجنګيدل:-

## پر غزنې باندې د غزانو حمله او د هغه ښار فتح

په (۵۵۷) هجري کال د غزانو طايفې له بلخ څخه پر غزنې باندې حمله وکړه. په دغه وخت کې په غزنې کې خسرو شاه پاچا ؤ، او خسرو شاه چې د غزانو له طايفی سره د جګړې او

مقابلې توان نه درلود، نو له غزنې څخه لاهور ته ولاړ. او غزنې د غزانو په لاس کې ولوید. په دغه وخت کې د غزانو مشر (زنګي بن علي بن خلیفه شیباني ؤ) او پوره دولس کاله غزنې د غزانو په تصرف کې ؤ. (تاریخ کامل (۹۹-۱۰۰-۱۳۷ مخونه- روضة الصفا ۴ جلد ۱۱۳ مخ) طبقات ناصري د کابل چاپ ۴۱۵-۴۱۷ مخونه جامع التواریخ ۲۰۲ مخ- تاریخ فرشته اول جلد ۵۲ مخ).

**د شهاب الدین له خوا د غزنې فتح**

وړاندې ولیکل شوو، چې له (۵۴۸) هجرې کال څخه د سلطان سنجر په وړه اشتباه د غزانو وحشي او زوروره طایفه د افغانستنان پر شمالي برخو د خراسان پر سیمو مسلطه شوه او د سلطان سنجر سلجوقي خورا قوي او معروف حکومت یې له منځه یوور. بیا د افغانستان منځنۍ برخې ته راغلل د غزنې ښار او په هغه پورې مربوطې سیمې یې قبضه کړې. غزان په داسې اندازه مقتدر او زورور وو، چې د دوی له مقابلې څخه ټول خلک عاجز او حیران پاته وو. خو د شهاب الدین محمد (سام) غوري د توري او شجاعت په اثر دا مشکل رفع او غزان یې له وطن څخه وشړل.

سلطان شهاب الدین پر غزانو باندې له خوا وشا څخه شدید یرغل راوور د هغوی استحکامات یې ورمات کړل غزانو ماتې وکړه او پښتنو غزان پسې تعقیب کړل او خورا زیات یې ورڅخه ووژل، نور وتښتېدل. غزنې بیرته د پښتنو لاس ته ورغی (۵۲۹هـ). (طبقات ناصري د کابل چاپ ۴۲۱ مخ).

د جزي اشتباه له امله غزان له (۵۴۸) هجرې کال څخه بیا تر (۵۲۹هـ) پورې یعنې یویشت کاله د افغانستان پر ځینو سیمو باندې مسلط وو او له خپل وحشت سره سم زیاتې تباه کارۍ او خراب کارۍ وکړې خو د شهاب الدین محمد سام د توري په زور له منځه ولاړل او بیا یې خبر نشته چې څه شول.

**هندي اربکیان:**

د انګریزانو امپراتورۍ چې کله په هند خیټه واچوله، نو د همدې هیواد د ساتلو او د مجاهدینو د فعالیت د مخنیوي په موخه له هندوانو، سکانو او مسلمانانو جوړه ملیشه را منځته کړه، دې ملیشې انګریزانو ته زیات خدمتونه تر سره کړو، په افغانستان د انګریزانو د درې واړو حملو په مهال هم ورسره همدا ملیشه ملګري شوي وه، چې تعبیر ترینه په تور لینګیانو کیدو، ځکه خو د انګریزانو د هر شکست په مهال د دوی هم زیات مړي په افغانستان کې پاتي شوي دي، له هند څخه د انګریزانو له وتو څخه وروسته همدې ملیشو ته رسمي بڼه ورکړل، په حکومتي چوکاټ کې راوستل شوه، چې د قبائلو او د طورخم په لویه لار کې د همدې ملیشو بېلګې اوس هم تر سترګو کیږي.

**دوستمي ملیشه:**

د روسانو په مقابل کې د جهاد په اوږدو کې له سخت مقاومت څخه وروسته روسان تېښتې ته مجبوره شول، نو د خلقیانو د جمهور رئیس نجیب سره یې په شریکه مشوره له ازبکانو څخه جوړه دوستمي ملیشه را منځته کړه، تر څو د مجاهدینو په خلاف ترینه کار واخلي، دوستمي ملیشې واقعاً د وحشت بازار ګرم کړی وو، په زرګونو افغانان یې شهیدان او بې کوره کړل، د افغانانو لپاره د ناسور دانه جوړه شوه، دا ملیشه تر اوسه پورې د خارجیانو په مرسته په پښنو ولاړه ده، ځیني سیمي یې تر خپل نفوذ لاندې را وستي دي، د الله تعالی عجیب شان وو، داکتر نجیب چې کله له شکست څخه وروسته له هیواده پښې سپکولې، نو د ده په خپل لاس جوړه شوي دوستمي ملیشې له لوري ونیول شو او د تورو تمبو شاته ورټیل وهل شو.

**د عصمت مسلم (جبار) ملیشه:**

په همداسې توګه داکتر نجیب بیا د جنوب لوري د پښتنو په منځ کې د عصمت مسلم ملیشه را منځته کړه، چې له ډېرو ظلمونو وروسته طالبانو ته په لاس ورغی او په ټانګ پورې یې را ځوړند کړو او د دې ملیشې په تابوت یې وروستی میخ ټک وهل.

**عراقي ملیشه:**

په اسلامي هیواد عراق چې کله امریکا یرغل وکړ، نو هغوی هم له سخت مقاومت سره مخ شوو، خو امریکایانو له یو لوري له عراقي شیعه ګانو څخه د ملیشې په توګه کار واخیست او له بل لوري څخه یې د مجاهدینو په منځ کې د نفاق اور ته لمن ووهله، چې په خپل دې کار کې دوی تر ډېره حده پورې کامیاب هم شول. د ملیشو او اربکیانو د رامنځته کولو په اړه د انګریز جاسوس سل کاله پخوانۍ سپارښتنه:

ډبلیو آر ایچ مرک ((انګریز لیکوال)) چې د فرنګې دورې په اوږدو کې په پیښور کې کمشنر هم پاتې شوی. په ۱۸۸۴ ل کال کې یې د ژورنالستۍ په توګه په جلال آباد کې انګریز لښکرته جاسوسي کوله، هغه خپل مشرتابه ته د لالپورې د

مهمندو په اړه پوره دقيق راپور په هغه وخت کې وړاندي کړ، کله چې فرنګيانو په جلال آباد د دوهم يرغل لپاره د اتلسمي پيړۍ په وروستۍ لسيزه کې ځان چمتو کول، دا راپور نشر ته په کتابي بڼه سپارلی شوی دی، د کتاب نوم دی The Mohmands، انګريز ليکوال د افغانستان له ملايانو څخه سرټکولی، خپل لښکر ته يې له هغوی څخه د ژغورني په موخه ګڼي ځانګړي سپارښتني کړي دي، د اربکيانو او مليشو د رامنځته کولو مشوره يې ورکړي ده، هغه خپل لښکر ته وړانديز کوي، چې په افغانستان کې د ملايانو ريښې ډيري ژوري دي، له هغوی سره د مقابلې او د هغوی د را پرځوني يوازينی حل دا دی، چې د ملايانو په مقابل کې اخوند ډوله او دنيا پرست ملايان، پيران، پاچا صاحبان او صاحبزاده ګان تقويه او را مخکې کړل شي، تر څو له دې لارې د ملايانو د نفوذ مخه ونيول شي، او د مجاهدينو د فعاليتونو د مخنيوي لپاره له قومونو څخه اربکيان او مليشي مطرح کړل شي، تر څو په خپل کور کې ورته غم جوړ شي.

**صليبي مليشې:**

په افغانستان د صليبي يرغل څخه وروسته صليبيان له سخت مقاوت سره مخ شوو، تقريبا د لسو کلونو په اوږدمهاله موده کې د هغوی لاستي راوړني ورځ تر بلې په کميدو شوې، مخالفين يې ورځ تر بلې قوي او ځواکمن شوو، دوی په خپلو ټولو وعدو او دعوو کې پاتې راغلو، نو د طالبانو د واک د کمزوري کولو لپاره صليبيانو له خپل شيطاني سوچ سره سم اربکيان را منځته کړل، تر څو له يو لوري خپله ناکامۍ پرې پټه کړي او له بل لوري څخه د اوږد مهال لپاره افغانان په کورنۍ جګړو بوخت وساتي. دا اربکيان نه اخلاق لري، نه ورته اسلاميت مطرح دی او نه افغاني دود او دستور ته اهميت ورکوي. صليبيانو خپل را منځته کړي شوي اربکيانو ته هر قسم امکانات په لاس ورکړل، زياتي تنخواوي ورته مقرري کړې او د دوی هر قسم وحشت يې له قانون څخه بالاتر وګرځاوو.

تاسو چې پورته د څومره اربکيانو او مليشو تذکر ولوست، په دې ټولو کې خطرناک ترين او ناوړه پايلې لرونکې اربکيان د اوس مهال صليبي اربکيان دي، ځکه پخواني اربکيانو به تر يو ځانګړي قوم او سيمې پوري تعلق درلود، نو د هغوی مخنيوی به آسانه وو او آينده ته به يې هم کومه ستونزه نه پريښوده ولې او سني اربکيان ډېر زيات خطرناک په دې دي، چې دوی په هر قوم او هره سيمه کې ريښې لري، دوی د طالبانو وګړي له نژدې پيژني او طالبان د دوی يو يو وګړی پيژني، نو د يو بل د وژنې په پايله کې په ګڼو ځايونو کې کورنۍ او حتی قومي دښمنياني را منځته شوي، چې کيدای شي د ډېرو کلونو په تيريدو هم دا اور مړ نشي. له همدې امله ولسي او قومي خلک بايد خپل رسالت سرته ورسوي، تر خپله وسع پوري هڅه وکړي، چې اربکيانو ته د تبارز لپاره ځای ورنکړي، په لوی لاس خپل او د سيمي امنيت په اوبو لاهو نکړي، او خپله سيمه د جنګ ميدان جوړ نکړي، په همداسي توګه د طالبانو له مشرتابه څخه هم غوښتنه کيږي، چې د همدې اربکيانو په مقابل کې په ډېر احتياط له نرمي او حکمت، له سياست او دعوت، له سوچ او غور، له زر او زور څخه کار واخلي او دا ستونزه ژر ختمه کړي، کنه نو خدای مکړه دا اربکيان به د اوږد مهال لپاره د افغانانو لپاره د ناسور دانه جوړه شي او په ټول هيواد کې به يو ځل بيا د پخوا ټوپکيزم په څېر انارشيزم را منځته شي.

اربکيان هم بايد پوه شي، چې غربيان يې د خپلو موخو لپاره استعمالوي، او يوې داسي بې مقصده جګړې ته يې ورټيل وهلي، چې صليبيان خپله پکښې له خپل ټول ځواک او قوته ناکام شوي، د ناکامۍ په صورت کې خو خپل انجام وينئ، خو د کاميابي په صورت کې به تر دې هم له ناوړه انجام سره مخ شئ او امريکايان به مو په خپل لاس د صدام په څېر په دار او د مشرف په څېر د تورو تمبو شاته کړي، ځکه دا د صليبيانو پخوانۍ شيطاني عادت دی، چې د ضرورت او مشکلاتو په مهال د خپل محسن مرۍ په خپل لاس ور کېکاږي او د مرګ غيږې ته يې سپاري نو پايله به مو د دنيا او آخرت نقصان او تاوان وي.

# خرقه مبارکه

## د مبارکي خرقې جوړښت:

هغه متبرکه خرقه چې په اوس مهال په کندهار کې پرته ده؛ د اوښ د پستو وړیو قاقمي چپنه ده. د رسول الله (ص) او د ده مبارک د کورنۍ د اهل الاطهارو په مبارکو لاسونو ګنډل شوې ده، دواړه لستوڼي یې تر لمنې لنډ دي، رنګ یې شین بخون دی او تېزه ځلا لري. استر او د لمنې څنډه (حشه) نه لري، تر عادي جګوالي لنډه ده، د مخ دوه بره یې څه ښوروېدلي او په وړین تار یې ګنډلي دي.

## لنډه تاریخچه یې:

دا سپېڅلې او مبارکه خرقه به رسول الله (ص) د ژوند تر وروستیو کلو پورې، د حجت الوداع، رنځ او رحلت په نېږدو ورځو او شپو کې اغوستله.

د تاریخونو په استناد، رسول الله (ص) تر رحلت څه موده وړاندې حضرت عمر فاروق (رض) او حضرت علي (رض) ته دا وصیت وکړ، چې دا خرقه به ابي عمرو اویس بن العامر القرني ته وسپارئ.

د ده مبارک (ص) له وصیت سره سم حضرت عمر (رض) او حضرت علي (رض) دا متبرکه خرقه یمن ته یووړله او سید التابعین ویس قرني (رح) ته یې وسپارله، نوموړی د دې زېرې په اورېدو سره د الله تعالی دربار ته پر سجده شو، د شکرانې دوه رکعته لمونځ یې اداء کړ او دا مطهره خرقه مبارکه یې واغوستله او بیا یې د ژوند تر وروستیو وختونو پورې له ځانه نه بېلوله.

حضرت ویس قرني کله چې په ۳۷ هـ کال کې د معاویه (رض) په وړاندې د حضرت علي (رض) په ملاتړ د صفینو په جنګ کې او په بل روایت په ۳۲ هـ کال کې په شهادت رسېدلی، بیا دا مبارکه خرقه د مکې معظمې په حرا غار کې خوندي کېدله، له هغې وروسته بیا د شیخ دوست محمد پر لاس بغداد ته یووړله شوه او د یلدام بایزید بن سلطان مراد بن سلطان ارخان بن سلطان قرا عثمانلو تر پاچهۍ پورې په بغداد کې پرته وه او وروسته د ګوډ تېمور په امر له بغداد څخه سمرقند ته ولېږدول شوه.

په ۱۰۲۴ هـ کال کې د ختیځ ترکستان واکمن ابو سعید اوغلان غوښتل چې دا مطهره خرقه د شیخ محمد حبیب او شیخ محمد نیاز په لاس له سمرقند څخه چیني ترکستان ته یوسي، خو پر دغه مهال شیخ اقا محمد او شیخ نظرمحمد دا متبرکه خرقه بلخ ته را ورسوله او تر ۱۱۰۹ هـ کال پورې هلته پرته وه.

بل پلو ته علامه عبدالشکور رشاد (رح) کاږي، چې دا مبارکه خرقه بلخ ته تر راوړلو وړاندې په بخارا کې پرته وه او د خپلې همدې خبرې د سپیناوي لپاره د استناد له پاره د امیر البحر سید علي او خواجه بهاؤالدین حسن بخاري نثاري روایتونه نقل کوي.

امیر البحر سید علي، چې په ۹۲۳ هـ کال سمرقند ته تللی، وایي: هلته ده د هغه قران شریف زیارت وکړ، چې د حضرت علي (رض) په خط د حضرت عثمان (رض) په خلافت

کې لیکل شوی و. د دې ترڅنګ یې هلته د رسول الله صلی الله علیه وسلم مبارکه چوخه او کڼاوې هم ولېدلې. دا متبرکات په ګورامیر کې پراته ول.

همداراز خواجه بخاري نثاري په خپل کتاب مذکر احباب کې چې د ۹۷۴ هـ کال تالیف دی، دنبوي خرقې شتون په بخارا کې ښیي او میا فقیر الله ننګرهاري ثم شکارپوري په خپل۷۴ مکتوب کې، چې د حاجي مولاداد کندهاري په نامه لیږل شوی دی، کاږي: ((... ولي بغداد جاء بها اولاد شیخ دوست محمد واحفاده الی البلدة الفاخره بخارا ...))

اروابښاد عزیزالدین وکیلي (د کندهار خرقې شریفې تاریخچه) نومي کتاب کې لیکي: په ۱۱۰۹ هـ کال کې دوو کسانو شیخ محمد ضیا او شیخ نیاز غوښتل، دا نبوي خرقه د بدخشان او چترال له لارې هندوستان ته یوسي؛ خو د بدخشان حاکم میر یار بېګ، کله چې له دې ناوړه نیت څخه خبرېږي، خپل سپاره ګماري، خو دا سپېڅلی امانت راوګرځوي او د ګوزګون په کلا کې یې خوندي کړي، او له همدې ورځې راهیسې د ګوزګون ښار نوم په فیض آباد واوښت[2].

په ۱۱۸۱ هـ کال د لوی احمد شاه بابا اشرف الوزرا شاه ولي خان له شپږو زرو سپرو سره له کندهاره بلخ او بدخشان ته واستول شو. دا چې د بخارا حکمران شاه مراد بېګ د افغانستان په شمالي سیمو کې یاغیان پارول، په دغه کال په خپله لوی احمد شاه بابا د هرات له لارې میمنې او اندخوی ته ورسېد او بلخ او شبرغان یې د یاغیانو له شره پاک کړل. همداراز په دې کال کې احمد شاه بابا د نبوي متبرکې خرقې د لاښه خوندیتوب له پاره حکم وکړ، څو دا مطهره خرقه د هېواد سیاسي مرکز او پلازمېنې اشرف البلاد کندهار ته راورسول شي. د دې حکم د تطبیق لپاره شاه ولي خان بامېزی له خپلو سپرو سره بدخشان ته واستول شو.

د تاریخ سلطاني مؤلف سلطان محمد خان خالص په دې اړه کاږي: کله چې دا مطهره خرقه د کندهار خواته راوړل کېده، په وروستۍ شپه د دې متبرکې خرقې صندوق د اوزبکو متولیانو له خوا پرانیستل شو او د خرقې داوږو تر منځ د رسول الله صلی الله علیه وسلم د مبارک لمس پر محل د نبوت مُهر د نوموړو متولیانو له خوا اخیستل شوی او بیا بخارا ته وړل شوی دی.[3]

دا مطهره خرقه له فیض آباده څخه تر کندهاره پورې په ځو مزلو کې اېښوول شوې ده، کله چې کابل ته راورسېدله، لومړی ځل د ده افغانانو په مسجدي سرای کې او وروسته د کابل د اوسني ښار په لوېدیزه کې د غره په لمنه کې پر یوه ډبره کېښودله شوه، چې اوس هلته د سخي شاه مردان زیارت موقعیت لري.

بالآخره د ۱۱۸۲ هـ کال د لومړۍ خور پر نهمه د شنبې په ورځ دا مطهره خرقه اشرف البلاد ته راوړل شوه او د احمد شاهي ښار د لمر خاته خواته په زړه جامع کې د څه مودې لپاره امانت کېښودل شوه. په ۱۱۸۳ هـ کال کې د دې متبرکې خرقې د تولی لپاره لوی احمد شاه بابا د کندهار له یوې درنې کورنۍ څخه حاجي عبدالحق اخوندزاده الکوزی د حاجي ملا شکرزوی او د حاجي ملا زلال لمسی وټاکه، چې د شاه زمان په زمانه کې لا ژوندی و.

## د خرقې شریفې ودانۍ:

لوی احمد شاه بابا د دې مطهرې او سپېڅلې خرقې د اېښودلو لپاره دوه پوړیزې ودانۍ ته ختګران او بنایان وګمارل او دا تصمیم یې لاره، چې د دې ودانۍ په لومړي یا کښته پوړ کې به د ده مقبره وي او په لوړپوړ کې به دا نبوي خرقه ښوول کېږي، خو د ستر ټولواک تر مړیني وروسته د ځینو ځیرکو او مدبرو علماوو په مشوره تېمور شاه سدوزي دا پرېکړه وکړه، چې دا مطهره نبوي خرقه باید د پاچهانو له نامه او زیارتونو سره تړلې ونه ګڼل شي، ځکه بیا هر پاچا د

---

[2]- د سیف لودین لیکنه، ویکی پی□یا،پر لیکه ن□ یوال پوهنغونډ□.

[3]- تاریخ سلطانی ۱٤٤ ـ ۱٤٥ مخونه

دې خرقې ورړلو او لېږدولو ته زړه ښه کوي. نو په دې غرض د لوی احمد شاه بابا په حکم رغېدلې دوه پوړيزه ودانۍ د ده مقبرې ته څانګړې شوه او د هغې ودانۍ لمر خاته خواته يوه بله ودانۍ د خرقې شريفې لپاره واچول شوه، چې په ۱۱۹۰ هـ کال همدې ودانۍ ته دا مطهره او متبرکه خرقه له زړې جامع څخه راوړل شوه او تر ننه پورې دلته پرته ده.

د خرقې شريفې لپاره د سپينو زرو پنجره د سردار نصرالله خان په امر د لوی ناب په وختو کې جوړه شوې ده.

د علامه رشاد په يادښتو کې د وکيل صاحب نورمحمد خان پوپلزي له خولې څخه دا روايت راوړل شوی، چې د خرقې شريفې د زيارت دروازه، پنجره او د سپينو زرو هګۍ غلام قادر زرګر جوړ کړي دي. د ده دوکان د حاجي لال جان تر مسجد لاندې په ښکاپر بازار کې و. امين سړی او په زرګرۍ کې ماهر و. له افغاناپورو څخه و، په ۱۳۳۴ هـ س کال کې لا ژوندی و ويل کېږي چې تر دې مهاله دوه ځلې خرقه شريفه بهر را ايستل شوې ،لومړی ځل په هرات کې په ۱۳۱۸ د وبا ناروغۍ د خپرېدو د مخنيوي لپاره او بل ځل هم د اسلامي امارت د واکمنۍ پر مهال.

ښه به وي چې لاندې کرښو کې هغه نظم راوړل شي، چې محمود طرزي د کندهار او خرقې شريفې په باب ليکلی او اوس مهال د خرقې شريفې د ودانۍ پر دېوال د صوفي عبدالحميد خان په خط په ښکلې بڼه په کال ۱۳۲۷هـ کې ليکل شوی دی:

خوش اب و خوش هوا و لطافت نثار شد
شيرين بود که نام خوشش قندهار شد

فخر رسول محمد مختار کزشرف
علم به نور اوشده از جهل بر طرف

يک خرقه مقدس از ثوب پاک خويش
بهر اويس کرده عطاء در زمان پيش

آن خرقه مقدس پاک اين زمان کجاست
پرسي کجا بگويي که در قندهار ماست

اين است فضل باقي اين شهر بې نظير
قدسيتش قيتس کن ای ذات خوشضمير

در اين ولايتست اراضي پُرشرف
انهاربس بزرگ دران جاري هر طرف

اقوام پر سلاح اصيل دلاوري
در روی شان ستاره چوشيران غاوري

د شرق نابغه شاعر علامه محمد اقبال د ۱۳۱۲ هـ کال د لړم په مياشت کې کله چې له کابل څخه کندهار ته ولاړ ؛ نوهلته يې د خرقې شريفې تر زيارت کولو وروسته دا څو بيتونه وليکل.

قندهار آن کشور مينو سواد
اهل دل را خاک او خان مراد

کوی آن شهر است مارا کوی دوست
ساربان بربند محمل سوی دوست

خرقه آن برزخ لا يبخيان
ديدمش در نکته ((لي خرقتان((
دادمارانعرۀ الله هو

ماخذونه:


۱ - د کندهار زيارتونه، علامه عبدالشکور رشاد (رح)
۲ - جغرافيايي يادښتونه، علامه رشاد(رح)
۳- اراکوزيا ،عبدالقدوس نجيب کندهاری
۴- ښوونځۍ ،درې مياشتنۍ مجله ،
۵ - د افغانستان لنډ تاريخ، علامه حبيبي
۶- انټرنيټ.

# مهمان نوازی در فرهنگ اسلامی

(مولوي رضا رخشانی)

یکی از صفات بسیار پسندیده و مکارم اخلاقی ـ که اگر در هر فرد وجود داشته باشد، فضیلت بزرگی محسوب می‌شود ـ مهمان‌داری و مهمان دوستی است؛ این خصیصه از قرون متمادی در جوامع مختلف بشری وجود داشته است. پذیرایی از مهمان باعث ایجاد انس و آشنایی بیشتر، شرکت دادن دیگران در ثروت خود، احترام و بزرگداشت مردم و گذشت مالی است و اقوامی که بهرۀ بیشتری از این سجیّۀ اخلاقی دارند، همواره به آن مباهات و افتخار می‌کنند.

رزق ما با پای مهمان می‌رسد از خوان غیب
میزبان ما است هر کس می‌شود مهمان ما

(صائب تبریزی)

یکی از صفات برجسته اعراب در عصر جاهلیت مهمان نوازی آنها بوده است. حتی بعضی از طوایف عرب شب‌ها در صحرا آتش روشن می‌کردند تا چنانچه غریبه‌ای وارد منطقه‌شان شد، آتش را ببیند و به مهمانی آنها برود. این خصلت پسندیده با ظهور دین اسلام در بین جوامع و پذیرش آن از طرف مردم بیش از پیش در جامعه اسلامی ثبت و جاودانی شد. در منابع اسلامی روایات فراوانی در تشویق این خصلت ارزندۀ اجتماعی ملاحظه می‌کنیم. از سوی دیگر مهمان‌داری سنت همۀ انبیا بوده است، به ویژه حضرت ابراهیم علیه‌السلام که پدر میزبانان لقب یافته بود، در قرآن کریم یکی از داستان‌های مهمان نوازی وی چنین بازگو شده است: «هل أتاک حدیث ضیف إبراهیم المکرمین إذ دخلوا علیه فقالوا سلاماً قال سلام قوم منکرون فراغ إلی أهله فجاء بعجل سمین] «ذاریات:24-26]؛ آیا خبر مهمان‌های بزرگوار ابراهیم به تو رسیده است در آن زمان که بر او وراد شدند و گفتند سلام بر تو! گفت: سلام بر شما! مردمان ناآشنا و ناشناسی هستید. به دنبال آن پنهانی به سوی خانواده خود رفت و گوساله فربه‌ای را ـ که بریان کرده بودند، برای ایشان ـ آورد. بخشندگی و مهمان‌داری حضرت ابراهیم علیه‌السلام در این صحنه آشکارا جلوه‌گر است. همین که مهمان‌ها سر می‌رسند و بر او داخل می‌شوند و می‌گویند: سلام، و او پاسخ سلام ایشان را می‌دهد، در حالی که آنان را نمی‌شناسد و با ایشان آشنایی ندارد. برایشان خوراک تدارک می‌بیند و جالب این که خوراکی زیادی فراهم می‌کند که برای ده‌ها نفر کافی و بسنده است، در حالی که فرشتگان طبق برخی روایات سه نفر بودند، رانی از این گوسالۀ چاق هم برای آنها اضافه بود. امروزه متاسفانه این سنت انسانی حتی در جوامع اسلامی محدود شده و یا تقریبا برچیده شده است. مردم مهمان‌داری را فقط محدود به دعوتی‌های رسمی آشنایان و اطرافیان خویش نموده و تمایل چندانی برای پذیرایی از مسافر و غریبۀ بی‌پناه از خود نشان نمی‌دهند، شاید دلایل این امر فضای حاکم مادی‌گرایی بر جامعه، زندگی شهرنشینی و ضعف هنجارهای اخلاقی در میان مردم باشد.

**انگیزۀ شرکت در محافل مهمانی**

یک فرد مسلمان با این انگیزه در جلسه مهمانی حضور می‌یابد که پذیرفتن دعوت مسلمان سنت و موجب استحکام پیوند برادری و دوستی و باعث اجر و پاداش معنوی است.

در فرهنگ دینی ما مبنای شرکت یا عدم شرکت در یک مهمانی هرگز این نیست که چون میزبان فردی فقیر است و توقع تهیه غذای به اصطلاح چرب و نرم نمی‌رود، باید با طرح عذر و بهانه از اجابت دعوت وی طفره رفت و بر عکس به خاطر پر کردن شکم با کمال حرص و ولع بر روی سفره افراد متمول حاضر شد.

حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم در حدیثی ارشاد می‌فرمایند: «لو دعیتُ إلی کراع لقبلت» [صحیح بخاری، کتاب الهبة، باب القلیل من الهبة]؛ (اگر شخصی برای پاچهٔ گوسفندی مرا دعوت کند، قطعاً آن را خواهم پذیرفت(. بنابراین وقتی هدف از دعوت کردن مهمان اظهار محبت میزبان نسبت به مهمان بوده و از روی اخلاص و صمیمیّت مهمان را به منزل خود عوت می‌کند، باید با کمال محبت، بدون در نظر گرفتن موقعیت اقتصادی و اجتماعی فرد، به دعوت وی لبیک گفت .از همین رو آن حضرت صلی الله علیه وسلم هیچگاه دعوت افراد عادی و مستمند جامعه را رد نمی‌کردند و حتی گاهی رنج و مشقت دوری مسافت منزل میزبان را نیز به جان می‌خریدند. به راستی هنگامی که میزبان و مهمان چنین هدف مقدسی داشته باشند، بستر مناسبی برای صفا و صمیمیت ایجاد شده و حضور در آن محفل باعث نورانیت و پاداش معنوی خواهد شد.

**آداب قبول دعوت**

1.بدون عذر- مانند اینکه نگران دچار گردیدن به گناه باشد- دعوت کسی را رد نکند.

2ـ دعوت دور و نزدیک را بپذیرد و اگر هم زمان به دو مهمانی دعوت شد، دعوت فرد اول را پذیرفته و از دومی معذرت خواهی نماید.

3ـ در میان دعوت کنندهٔ ثروتمند و مستمند تفاوت قایل نباشد و دعوت هر دو را قبول کند، زیرا نپذیرفتن دعوت انسان فقیر سبب رنجش خاطر وی گشته و نوعی تکبر و خود برتر بینی به حساب می‌آید.

4.با نیت احترام به برادر دینی خود دعوت او را قبول کند، تا از این روش اجر و ثوابی هم کسب کند.

**وظایف میزبان**

در مهمان داری، میزبان و مهمان نسبت به یکدیگر وظایفی دارند که باید آنها را رعایت کنند. هرگاه مهمانی به منزل آید باید آداب مهمان‌داری را رعایت و احترام او را به جا آورد، البته منظور این نیست که در پذیرایی و خوراک و نوشیدنی به اسراف و ریخت و پاش و تکلف بپردازد، چرا که سنت و شریعت بر اعتدال و میانه‌روی تاکید دارند، بلکه منظور این است که پس از استقبال از مهمان و روبه‌رو شدن با خوش‌رویی با وی، جایی مناسب برای نشستن، استراحت و خواب برایش فراهم سازد، قبلهٔ منزل و جای طهارت و وضو و... را به او نشان دهد، اگر پس از وضو و شستن دست و صورت جان پاک ای به او می‌دهد که دست و صورتش را خشک کند، نباید جان پاک ای باشد که مورد استفاده خود و فرزندانش است.

وسایل نظافت و پاکیزگی و رختخوابی که در اختیار او می‌گذارد حتماً باید پاک و تمیز باشد و قبل از اینکه وارد حمام شود باید وسایل شخصی و خانوادگی را که دیدن آن برای مهمان مناسب نیست بردارد، حرمت خانواده و احترام مهمان و میزبان اقتضا می‌کند که لباس و وسایل زنانه دور از دید مهمان باشد. مکان مناسبی جهت استراحت در اختیار مهمان بگذارد تا در فضایی دور از سر و صدای بچه‌ها و به هم خوردن ظروف آشپزخانه استراحت کند.

**آماده کردن غذای مورد علاقه**

یکی از خصایل نیکوی میزبان، به ویژه در دعوتی‌های دوستانه و خودمانی، این است که از مهمان بپرسد غذای مورد علاقه‌اش چیست؟ اگر توانست آن غذا را برای وی تهیه کند، در غیر این صورت از او عذرخواهی نماید. پرسش از مهمان این حُسن را دارد؛ چنانچه غذایی برای او ضرر دارد یا داکتر او را از خوردن آن منع کرده است تهیه نگردد و در عوض غذایی که باب میل مهمان است یا برای او ضرری ندارد، آماده شود، چرا که بسا اوقات غذایی طبق ذایقه میزبان بسیار لذیذ و خوشمزه است اما متاسفانه باب طبع و ذوق مهمان نیست و او هیچ علاقه‌ای به آن ندارد و شاید نتواند از آن غذا مصرف نماید، چنین امری باعث افسوس و

حسرت صاحب‌خانه خواهد بود که چرا بابت تهیه آن غذا هزینه فراوان کرد و متحمل زحمت گردید؟

**غذا را هر چه زودتر برای مهمان آماده کند**

مهمان وقتی از راه می رسد، به ویژه اگر مسافر باشد، غالباً خسته و گرسنه است، هم نیاز به غذا دارد و هم نیاز به استراحت. بنابراین باید هر چه سریع‌تر غذای او را آماده کنند تا بتواند استراحت کند.

**نباید از مهمان پرسید غذا خورده است یا نه**

وقتی مهمانی سرزده از راه رسید میزبان بدون اینکه از او سوالی کند، هر غذایی را که در خانه داشت، برای او بیاورد تا میل کند و اگر غذا نخورد آن را بردارد، چون بعضی از مهمان‌ها کم‌رو هستند و چنانچه از آنها پرسیده شود غذا خورده اند یا نه؟ می‌گویند: آری، در حالی که ممکن است بسیار هم گرسنه باشند.

**غذا خوردن با مهمان**

یکی از وظایف اخلاقی میزبان این است که همراه مهمانانش غذا بخورد و از غذا دست نکشد تا همه مهمانان سیر شوند و کنار بکشند. زیرا ممکن است بعضی از مهمان‌ها کم‌رو باشند و در صورت غذا نخوردن صاحب‌خانه، آنان هم غذا نخورند و یا هنوز سیر نشده دست از غذا خوردن بکشند.

باید به میزان مطلوب و لازم غذا جلو مهمان نهاده شود و غذای کم را جلو مهمان نهادن نوعی حرمت شکنی به خود و مهمان است و غذای بیش از حد لازم آوردن هم نوعی تکلف و خودنمایی است، که هر دو آنها ناروا است.

**طعنه نزدن به مهمان**

اگر مهمان، اخلاق به خصوصی دارد و یا عیبی در اوست که اگر کسی آن عیب را به رخش بکشد ناراحت می‌شود، میزبان نباید کوچک‌ترین اشاره‌ای به آن بکند. نگاه کردن به دهان مهمان در حین غذا خوردن، اشاره کردن به چگونگی غذا خوردن و زدن حرف‌های رکیک از جمله اخلاق زشتی است که بعضی از میزبان‌ها دارند و مهمانِ خود را با این وسیله ناراحت می‌کنند.

**آمادگی دایم برای پذیرایی از مهمان**

کسی که اقوام و دوستان زیادی دارد، یا شخصی است که مشهور به بخشندگی و مهمان نوازی است و هر آن احتمال دارد برای او مهمان بیاید، حتی‌المقدور باید آماده پذیرایی باشد، تا اگر مهمانی بدون دعوت قبلی و سرزده وارد شد، برای پذیرایی از او در مشقت نیفتد و یا مهمان گرسنه نماند.

و سرانجام از جمله وظایف میزبان این است که:

ـ دربارهٔ مطالبی که مهمان دوست دارد، صحبت کند؛

ـ قبل از مهمان نخوابد؛

ـ در حضور آنها از کمبودها و مشکلات زندگی ننالد؛

ـ چنانچه صحبت‌های مهمان باب میلش نبود، خود را ناراحت نشان ندهد؛

ـ در حضور او به خانواده خود خشم نگیرد؛

به هر حال میزبان تا جایی که می‌تواند مهمان خود را گرامی بدارد و از حضور او اظهار مسرت و خوشحالی نماید. در راستای خدمت به مهمان از هیچ تلاش و کوششی فروگذار نکند، چرا که در حدیث نبوی آمده است: عن أبی هریرة رضی الله عنه عن النبی صلی الله علیه وسلم قال: «من کان یومن بالله والیوم الاخر فلیکرم ضیفه» [متفق علیه]؛ (کسی که به خدا و روز قیامت ایمان دارد باید مهمانش را گرامی بدارد.(

**آداب اولویّت بندی در پذیرایی از مهمان**

به خاطر پیروی و عمل کردن به راه کارهای پیامبر اکرم صلی الله علیه وسلم، بزرگان و اهل فضل و احترام را در اولویت قرار گیرند، در هر جمعی شخصی حضور دارد که از سایر افراد بزرگ‌تر، عالم‌تر یا شرف پیشوایی و رهبری یا شرف جهاد در راه خدا یا شرف سخاوت و بخشش در راه خیر و غیره باشد، سنت است که در پذیرایی و احترام ابتدا از این افراد شروع شود و بعد از آن کسانی که در سمت راستشان قرار دارند، ادامه دهد. زیرا علاوه بر فرمایش آن حضرت که فرمودند: «کبّر کبّر» (رعایت حق بزرگتر را بکن)، ایشان فرمودند: «لیس منّا من لم یرحم صغیرنا و لم یوقر کبیرنا» [مشکوة المصابیح، رقم:497]؛ (کسی که کودکان را مورد ترحم قرار ندهد و به بزرگان احترام نگذارد از ما نیست.(

یا درجای دیگر می فرمایند: أنزلوا الناس منازلهم] «سنن ابی داود، رقم:4842] ؛(هر کسی را در جایگاه خود قرار دهید )

## وظایف مهمان

مهمان نیز به نوبه خود نسبت به میزبان وظایفی دارد که انجام آن موجب رضایت خداوند و مستحکم شدن اخوت میان مومنان می شود.

## اطلاع دادن میزبان

هر گاه فردی قصد مهمان شدن در منزل کسی را داشته باشد، باید از قبل به وی اطلاع دهد یا حداقل زمانی به منزل شخص برود که مهیا ساختن بساط مهمانی برای صاحب خانه میسر باشد، زیرا اگر فرد بدون هماهنگی در زمانی که فرصت چندانی برای تهیه غذا نیست به خانه کسی برود، چه بسا میزبان خود را در زمینه تهیه غذا با درد سر و مشکل مواجه سازد و در نتیجه وی جلوی مهمان احساس شرمندگی نماید.

## در وقت معین و مقرر حاضر شود

مهمان نباید مهمانی رفتن را به تاخیر بیندازد که صاحب‌خانه یا مهمانان دیگر در انتظار بمانند، همان طور که اگر موقع معینی را تعیین کردند، نبایستی زودتر به مهمانی برود، زیرا ممکن است میزبان در آن لحظه آمادگی استقبال و پذیرایی را نداشته باشد و در نتیجه شرمسار شود.

## هر جا صاحب خانه اشاره کرد بنشیند

مهمان هرگز نباید با میزبان در مورد مکان نشستن جر و بحث کند و هر جایی را که برای او پیشنهاد شد آن جا بنشیند، چرا که ممکن است خود مهمان جایی را انتخاب کند که مشرف بر نقاط حساس خانواده مانند آشپزخانه باشد یا ساکنین منزل را دچار سختی و حرج می‌کند. بنابراین پیشنهاد میزبان را اطاعت نموده و احترامش را پاس بدارد و همان جا که به او گفته می‌شود بنشیند.

## پرهیز از تجسس در مهمانی

شخص مؤمن هرگاه وارد منزل یکی از دوستان و برادرانش شد، نباید همچون جاسوس‌ها به کنجکاوی گوشه و کنار منزل بپردازد، بلکه در آن محل مواظب خود باشد و هرگز به نامحرمان نگاه نکند، به هیچ عنوان صندوق، کیف، بسته، پرونده یا چیز نهفته و طبقه بندی شده‌ای را باز نکند، زیرا چنین عملی خلاف آداب اسلامی و بر خلاف تعهد و امانتی است که میزبان آن را بر دوش مهمان گذاشته است، چرا که صاحب خانه منزل و دارایی خود را به عنوان امانت در اختیار مهمان قرار می‌دهد، پس مهمان نباید موازین مهمانی را زیر پا بگذارد و از حُسن ظن میزبان سوء استفاده کند.

## تقاضای دشوار از میزبان نکند

یکی از وظایف مهمان این است که اگر میزبان وضع خوبی ندارد و قدرت مالی او ضعیف است، از او تقاضای غذایی غیر از آنچه برایش می‌آورند نکند، حتی اگر می‌داند میزبان غذای مورد علاقه‌اش را تهیه می‌کند، باز هم از نظر اخلاقی و عرفی این تقاضا درست نیست.

## به نوع غذا اهمیت ندهد

در بین مردم این طور جا افتاده که اگر کسی را به مهمانی دعوت کردند، یعنی این که برای او غذای لذیذی تهیه کرده‌اند و دعوت کردن فقط برای خوردن است، وقتی از مهمانی برگشت، اولین سوالی که از او پرسیده می‌شود، این است که چه غذایی درست کرده بودند؟

هدف از پذیرفتن دعوت و مهمانی رفتن نباید پر کردن شکم و لذت جسمانی و نوع غذا باشد، بلکه هدف باید امور معنوی و نزدیکی به خداوند از این طریق باشد. مثلا با خود فکر کند که من به خاطر عمل به سنت پیامبر، که اجابت دعوت مسلمان را از حقوق او برشمرده، به مهمانی می‌روم. آن حضرت در حدیثی می‌فرمایند: «إذ دعی أحدکم فلیجب» ؛ (هر کسی از شما برای صرف غذا دعوت داده شد، بدان پاسخ مثبت دهد )

در حدیث دیگری آن حضرت ارشاد می‌فرمایند: «حق المسلم علی المسلم خمس، ردالسلام، تشمیت العاطس، إجابة الدعوة، إتباع الجنائز و عیادة المریض] «.صحیح البخاری، کتاب الجنائز، باب الامر باتباع الجنائز] ؛ (هر مسلمانی بر مسلمان دیگر پنج حق دارد ؛ پاسخ دادن سلام، جواب عطسه، اجابت دعوت، مشارکت در جنازه و عیادت بیمار.(

پس در پذیرفتن مهمانی ها هدف‌های خود را الهی کنیم. بدون تردید اهمیت دادن به غذا و کم و زیاد بودن آن از خصایص انسان‌های نمک نشناس است.

**برای میزبان دعا کند**

وقتی میزبان در کمال بذل و بخشش امکانات شخصی خود اعم از غذا، جا و... را در اختیار مهمان قرار می‌دهد، مهمان نیز وظیفه دارد برای میزبان و خانواده‌اش دعای خیر و از آنها تقدیر و تشکر کند، چرا که در حدیث آمده است: «من لم یشکر الناس لم یشکر الله» [جامع الترمذی، رقم الحدیث:1955]؛ )کسی که از مردم سپاس گذاری نکرد، سپاس خداوند را بجا نیاورده است.(

**اسرار میزبان را حفظ کند**

همان طور که میزبان باید اسرار مهمان را حفظ کند و عیوب او را نقل نکند، مهمان نیز وظیفه دارد اسرار میزبان را حفظ کند. از زمان‌های قدیم تا به حال مرسوم بوده که هرگاه کسی نان و نمک فردی را خورد، دیگر نباید به او خیانت کند. حتی افراد سارق و گناهکار وقتی نمک کسی را می‌خوردند، دیگر به میزبان خیانت نمی‌کردند و حرمت او را نگه می‌داشتند. اگر یک نفر قطعه‌ای نان را به طرف حیوانی بیندازد، آن حیوان تا مدت طولانی هر وقت آن شخص را ببیند به عنوان قدردانی و امتنان با او بد رفتاری نمی‌کند، پس انسان چگونه به میزبان خود خیانت می‌کند؟!

**آداب برگشتن از مهمانی** نخست باید صاحب‌خانه مهمانش را به هنگام برگشت تا درب منزل بدرقه کند، این کار سنت است.

دوم؛ مهمان هم با شادمانی و گشاده رویی منزل میزبان را ترک نماید و چنانچه در حق او کم توجهی و ناروایی انجام گرفته باشد به روی خود نیاورد. این خصلت جزو اخلاق حسنه و تواضع است.

سوم؛ مهمان نباید بدون اجازه میزبان و رضایت او مجلس را ترک کند، بلکه رضایت خاطر او را در مقدار اقامت رعایت کند، البته اقامت او نباید باعث ایجاد مزاحمت برای میزبان گردد. در قرآن کریم می‌خوانیم: «فإذا طعمتم فانتشروا» [أحزاب:53]؛ (زمانی که غذا خوردید پراکنده شوید).

هرگاه کسی به عنوان مهمان ـ بدون دعوت قبلی ـ وارد منزل شد نباید بیش از سه روز در آن جا اقامت کند، چون گاهی صاحب خانه از دستش به تنگ می‌آید. حضرت رسول اکرم ـ می‌فرماین: «الضیافة ثلاثة أیام فما کان وراء ذلک فهو صدقة علیه» [متفق علیه]؛ (مهمان بودن تا سه روز است، مازاد بر آن از مهمانی خارج می شود و به صورت احسان و صدقه دادن در می‌آید).

البته اگر میزبان از خلوص قلب اصرار کرد که بیشتر از سه روز بماند می‌تواند درخواست او را بپذیرد. بنابراین مهمان‌داری در چارچوب موازین شرعی و اخلاقی باعث اجر و پاداش اخروی، نزول نعمت‌های الهی، ایجاد فضای صفا و صمیمیت و رفع کدورت‌ها میان افراد جامعه خواهد بود.

**امام شعراوي رحمه الله وايي چې**

په هر څه کې محاسبه د قیامت ورځې ته ځنډول شوې ده پرته له ظالم څخه چې په خلکو ظلم کوي، د ظلم محاسبه هرومرو الله په دنیا کې کوي ترڅو خلکو ته دا ثابته شي چې الله له ظالم څخه په دنیا کې قصاص اخلي ترڅو د دنیایې ژوند توازن وساتل شي او خلک پردې پوه شي چې د ظالم لپاره له اخروي سزا سره سره دنیوي سزا هم شته، نو له همدې وجې سول الله صلی الله علیه وسلم ویلي دي چې :د مظلوم له ښیرا څخه ځانونه وساتئ؛ ځکه چې د هغه د ښیرا او الله جل جلاله تر منځ پرده نشته، الله جل جلاله د هغه ښیرا له وریځو څخه لوړوي او بیا ورته وایي چې په خپل عزت او جلال مې دې قسم وي چې زه به ستا نصرت او مرسته هرومرو کوم که څه هم چې یو څه وخت پرې تیر شي

**به قول ابن یمین:**

هرکه را بینی به گیتی، روزی خود می‌خورد ... گر ز خوان توست نانش یا ز خوان خویشتن

پس تو را منت ز مهمان داشت باید بهر آنک ... می‌خورد بر خوان احسان تو نان خویشتن

# مات غلیم

حاجي محمد اواب

لکه داني چې وي شلېدلي او له تاره وځي
داسې په ځغاسته دا بدرنګه زموږ له ښاره وځي

هر زورور چې پر مختللې وسله راواړي دلته
له هسک پامیر سره ټکر کې، بس له کاره وځي

بیا مو بګېل کړ دا ناځوانه؛ زیاتي وپوهېدې !
ژامې یې ربړدي، له یاغي مست کندهاره وځي

ستا په لیدو چې د خوښۍ طالب وزره ته راشي
د غم ناټو نو بیا له دغه ننګرهاره وځي

په یوه سوک مو چې ګنګیچ کړ دا سرمسته دښمن
تاسې یې وینئ ! چې وجود یې اختیاره وځي

زموږ له ویرې یې په زړو وام[1] ننوتي داسې
اخر بې[1] واورئ چې له خپل کلي، بازاره وځي

او به یاره څوک چې زموږ د جنګ په جال کې ګیر شي
ها د ژوندیو له نوملړ او له شماره وځي

